# پښتو پښويه (گرامر)

# PASHTO GRAMMAR

دویم لاسوهلی ازمیښتی چاپ

پوهندوی دوکتور مجاور احمد زیار

Dr. M. A. Zyar



ادب پوهنځی

د ۱۳۵۷ وری

نیو لیك (فهرست)

| سرلیک | مخ |
|---|---|

| سرلیک | مخ |
|---|---|

سرلیک — مخ

## یادښت

دنوي اوزاړه ترمنځ یوه نه شلیدونکی شخړه یو دیالکتیکی قانون دی • هر زوړ شیز اوپدیده په خپل ځان کی دننه دیوه ورسس نوي اړ پیچ (ضد) زړي روزي او په هدې دود اودوی دوګړنی ټولنی بشپړتیا یی بهیرمخ پروړ اندي دروس اولـــه دي سره یی انداوبوهه • په دي توګه له مهال تیریدنی اوځانګړو ځانی او جهانی اړونو سره سم بشري پوهنه تل بدلون اونوي ګیدون موس اوهمدغه بدلون اونوي‌کیدون یـــــی بشپړتیایی تګلوري ورسیخوي •

زموږ په وروسته پاتی ټولنه کی دنورو بشري پوهنو په لړ کی ژبپوهنه هم ښـــوي دودیدونکی ده او زموږ له ټولنیزو اړونو سره سم یی یو رنګ لاسم دود نه وي موندلـــی چی په نوره نړۍ کی هغه بیا دوخته زوړ وي • که څه هم لږ ترلږه شل کاله پوره کیدونکی دي چی نوي ژبپوهنی دادبپوهنځی له لاري زموږ هیوادته سررادننه کړې خوبیا یـــــی‌هم نه یوانحـــ دزړې دودیزې‌ژبپوهنی‌اوبنوین ځای نه دي نیولی چی لاکورت یی ثري سـر هومره هم نه دي هسك کړي •

دعبدالاحد یاري دنوي ژبپوهنی خولوستونه اولیکنی لادشاګردانو مغزو ته سمی نه وې رسیدلی چی درښتین ژبنودونی بیاتول افغانستان نیولی وکه له الهامه ثیرشو ؛ دپښتو ځانګی پازوال استاد شاکر دنوي ژبپوهنی دپیښاوو په توګه نه دومره اکادمیکـه زده کړه اوسمبالتیا درلوده اونه یی ورسره لږه کی زړورتیا چی هغه زړه ژبنودنـــه لږ ترلږه له پوهنځی څخه وباسی • ده چی دژبپوهنی مو• سسن او پښتو ځانګی دژښیو خیړنو او ښوونی بشپړ مونو پول یی په لاس کی وله (( نوئیم وخه ته وایی — مورفیم وخـه ته وایی؟ )) پرته نه نورڅه زده وو او نه یی ترهغه زیات څه وړ اندي کړای هـــــول •

نو په دي توگه به ترې پخپله د پښتو ژبپوهنې یا پښتو پښووې په باب څه هیله شوي واي ۰ د تېزي نوي ژبپوهنې ( د پښتو ټولنې د ۱۳۴۴ خپرونې ) او د پالوال نوي مصدر ( د اد بپوهنځی د ۱۳۵۰ خپرونې ) بیا هم زاړه غوزونه یو څه وښنگول او د ایې لز تر لزه وښووله چې نوي ژبپوهنه یا پښوونه څه مانا !

ما د ژبپوهنې د یوه نوي زده کوونکی او پښتو گړ د ود څېړونکی په توگه د سویس له زده کړونه لېبیرته راستید و سره له زړي ژبپوهنې او زړې ژبښودنې سره یوې مخیزي نه پخلا کید ونکی سرغړاوي ته راود انگل او خپله لوړې د نده مې د اوبالله چې له پښتوځانگې څخه همد ومره د زړې ژبښودنې تخرویلز د یوم لکه کوم کار چې په دري ځانگه کې الها م او نگهت کړي دي او ترخپل مسلکی واک او وس پورې د نوي ژبپوهنې په رڼاکی د یوې نوي ښوونځیوالی ( مکتبی ) پښووې او ژبښوونې بنسټ هومره کیږد م ۰

زه د اباتې نه وهم چې دغه پښووه په تیوریک ډول د کوم ډېر تازه او لوکس ژبوهنیز ښوونځی ( لکه ترانسفور ما سیونل – ژنراتیف گرامر ) ښکارند وی گڼل ای شی ا و سل په سلو کی د پښتو یو بشپړ سپړیز ( تشریحی ) گرامر اوسی خود ا په ډاډ ویلای شم چې د ود یز نور ماتیف گرامر هم نه دي ۰ د اچې لیکې او علمی پښتو لا منځ ته نه د ه راغلی او هرڅا خپله کلیواله او ځانگړي پښتو رامځکی کړې د ه نو کید ای شی ځینو گوتیوونکو ته زما دغه پښووه یو نور ماتیف گرامر وایبی ځکه ما د نورو پرخلاف ځانته یوا ځینی پښتو امرلی او غوره کړي د ه او د گرامري د ود ونو ( قاعد و ) او ټولیو ( کتیگوریو ) په سپړنه ایستنه او ویشنه کې مې د ټولو پښتو گړ د ود ونو د یوې گډې امرلی ( انتخابی ) بڼې ارا و معیار په کار اچولی دي په دي چې د (( پښتو )) گرامر لیکه او د (( پښتو گانو )) گرامر لیکه سره توپیر لري ۰

دموخی اومرام له پلوه مازیات دپښتو ښانگی دشاګرد انو راتلونکی ارتیا په پام

کی نیولی ده . هغه داچی دوي په داسی یوي‌نوي پښتوس سره پرخپل خپل وار پــه

منځنیو او لوړو ښوونیزو ښانګو کی سمدلاسه دزړ ي ژبښوونی پاي‌ته رسیدل اوله دود ه

لویدل هومره ونښوولاي شی اوپرځاي یی دنوي ژبښوونی یوه وزمه هومره ځپره کړي داسی

نوي ژبښوونه چی هم تخنیکی اومتودیکس نوټوالی لري اوهم ژبنی نوټوالی . او زماپه ازمینښت

ندي لاسوند چی ماولی دغه دوه ارخیز نوټوالی ته پریووار را ودانګل ، داديچی یوائحی

په دي یوه نوټــوالی له زړ ي ژبښوونی او پښتوس سره مبارزه بیاهم نیمګړ ي وه . د (( حــرف

یاتوري ))ــ(( مصدر )) ــ (( فاعل )) او (( مفعول ))غوندي کرغیړنی نومونی چی‌استادیس

په ویلو او شاګردان یاشاګرداني یی په اوریدلو شرمیزي نور هماغسی له دوبه او موده وتلی

بریښی لکه‌پخپله دزړ ي ژبښودنی کرغیړ ن دوداو تخنیک .

که ځه هم د دي نوي‌غورځنګ دغه دویم اړخ راته داپنځه شپږ کاله دسریه کاسه

کی اویه راکړي اودزړي لیاري پلویانو می دکوټلو لپاره همداپلمه ونیوله خوما هرځه دیوه

(( علمی بري )) په خاطر وزغمل او بدال می پرځمکه کښی نښود . همدغه زغم ار تینــــګ

هوډ اوولاړ و چی تر بريي یی ورسولم او هغه داچی دغه نوي پښتو به می له ټولو نوټو نومونو

اوترمونو سره هم شاګردانو وسهلاي شوه او زده کړ اي شوه او هم می دشاګردانو شاګردانو .

داد بپوهنځی دناپښتو ښانګو او ځینو نورو پوهنځیو لپاره له همدغه ګرامر ځخه لوستونــه

برابر شول او همداسی یی پسی دهیواد نورو ټیرو ښوونیزو مرکزونو ته لارپید اکړه اولا

پیدا کوي یی . دملالی لیسی پښتو ښانګی زما له همدغه ګرامر ځخه یووتلی لوستلیکی کاپی

کړ او دهغه لیسی په درسی کتابونو کی یی ورته ځاي ورکړ . بی له دي چی زما لــه

شاګردانو ځخه کوم‌یوه هلته ښکارندوي کړ ي‌وي . له دي ټولو خبرو سره سره زه بیاهــــم

خپله پښتویه یوه بشپړ ه اوبی (( خو )) نه بولم اونه یی بوللاي شم . هماغسی چی زمــــا

دغه پښویه د پوهاند رښتین ترژبړودنې نوي ده او د هغې ځای یې ونیو همدغسې به په
هغه
ځاپسې د دوکتور تزي هم زما تر دي نوي‌وي اوځای به یې‌نیسي . مقصد یوه نوي‌لاره
هومره مې وایسته اوسنو نوي ژبپوهاند او پښو ییوهاند کولای شي بې له کوم
سرخوږه د نوي ژبپوهنې د هماغه بیخي نوي ښوونځي په رڼا کې د لازیاتي نوي پښتو
ژبپوهنې او پښتو پښوویې په باب تازه نوښتونه او نو چارونه وړاندې کړي . نه یوازې
په ګړ هار بلکې په چار او کړن سره زما د دغوځای ونیسي او په دي توګه د نوي‌نړۍ او
نوي پیړۍ له پوهې او تخنیک سره د پښتو او ښتو په پیژندویې او روز دیدنه کې ترما
زیاته ونډه واخلي .

تل دې پرنا پوهې باندي د پوهې بري

اوبر زړو باندې د نویو لاسبري

پوهندوی دوکتور مجاور احمد زیار

نادرشاه مینه د ۱۳۵٦ دکب ۱۵

## پښتو ــــ ويـ ــه (گـــــــــــرامر)

پښتويه دژپوهنې يوه ستره سپړيزه (تشريحي) برخه ده چې په دوديزه‌ول پـــه ښوونځيو او ژبنيو زده کړو ځيو (کورسـو) کې دیوې ژبې یادهغې دمعیاري لیکنی بڼې دزده کړې داسانتیالپاره لوستل کېږي ، یاپه لنډه‌ول :

پښتويه ديوې ژبې له بيلا بيلو جوليزو توکونو او دودونو څخه غږيږي ياپطنډه وينا پښتويه ديوې ژبې دږغاونې (جوړښت) سپړنه (شرح) ده چې داسپړنه له درو اړخو څخه ترسره کيږي :

١ ــ غږ پوهه (فونو لوژي).

٢ ــ گړ پوهه (مور فو لوژي)

٣ ــ غونډ له پوهه (سينتکس).

### لومـــــــــړۍ برخـــــــــه

### غږپوهه (PHONOLOGY)

غږپوهه په تولـيز ډول ديوې ژبې لومړنې ساده توکونه (غږونه) کتې اوڅيړي اوپه‌لنډ ډول پردوو څانگو وېشل کېږي :

١ ــ اوازپوهه (فونيميکس).

٢ ــ سپڼپوهه (فونيتيکس).

اوازپوهـــــــه : اوازپوهه دیوې ژبې ارزښتاك غږونه (اوازونه) ترڅیړنې لاندې نیسی.

اواز : (فونیم) هماغه داورید و وړ سپـڼ یاغږدی چې دغږيزوغړو او ساهوا په مرسته پرېووار له خولې راوځي پخپله کومه مانا نلري خو په وييونو (کلمو) کې مانيز توپير پيښوي نکه پوراو تور چې ديوه اواز په بدلولو سره دوه بيلا بيل ويـــــونه دي.

سپڼپوهـــــــه : سپڼپوهه دیوې ژبې ټول غږونه يا سپڼـونه که ارزښت ولري یاونلري یومخیز ترڅیړنې لاندې نیسی د ساري په ډول (د) دپښتويو ارزښتاك غږ (اواز) دې خو په وين

یاڅیه کی له راز راز دریځ (موقعیت) سره بیلابیلی بڼې څانته غوره کوي . د اسی چې وینګ (تلفظ) یې د وي یا څپې په یوه برخه کی زور وروي او په بله کی کمزوري یا نیم کمزو ري لکه په (ډوډ) کی چې لومړی (د) تر دویم هغه غښتلی ویل کیږي او دویم . بیخی د (ت) وینګ ته نژدې کیږي . نود فونیتیکس له پلوه پرلومړي دویم او ... (دالونو) ویشو او د فونیمیکس له پلوه یې د هماغه یواځینی (دال) په توګه پیژنو .

په دې توګه هره ژبه یو ټاکلی شمیر اوازونه لري خو سپینـونه یې هرڅومره کیــــدای شی .

د پښتو اوازونــــه : یوه ـ یواځینی ـ ګڼه لیکی معیاري پښتو ټول ۳۶ اوازونه لري چـــې پرڅلورو ډلـوویشل کیږي :

۱ـ خپلواك (واول) چې راپیداکیدل یې بی له کوم ستر هوایی بندیز څخـه ترسره کیږي او شمیریې اووه رسیږي .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| زور | a | لکه | سر | sar |
| زورکی | ə | لکه | تره | trə |
| الف | ā | لکه | کار | kār |
| اوږده ي | e | لکه | ادي | ade |
| لنډه ي | i | لکه | ښادي | ṣādi |
| اوږدو | o | لکه | اور | or |
| لنډ و | u | لکه | سور | sur |

۲ـ بیواك (کنسوننت) چې له راپیداکید و یاله خولی څخه د راوتو پروخت د ساهوا له بندیز سره مخامخیږي او شمیریې (۲۷) ته رسی .

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| bar | بر | لکه | ( b | (بې | ب |
| por | پور | لکه | ( p | (پې | پ |
| tor | تور | لکه | ( t | (تې | ت |
| ṭol | ټول | لکه | ( ṭ | (ټې | ټ |
| jor | جوړ | لکه | ( j | (جې | ج |
| ĵwar | ځور | لکه | ( ĵ | (ځې | ځ |
| car | څار | لکه | ( c | (څې | څ |
| čar | چار | لکه | ( č | (چې | چ |
| xol | خول | لکه | ( x | (خې | خ |
| dod | دود | لکه | ( d | (دې | د |
| ḍaḍ | ډاډ | لکه | ( ḍ | (ډې | ډ |
| zor | زور | لکه | ( r | (رې | ر |
| ṛund | ړوند | لکه | ( ṛ | (ړې | ړ |
| zər | زر | لکه | ( z | (زې | ز |
| žər | ژر | لکه | ( ž | (ژې | ژ |
| ẓira | ږيره | لکه | ( ẓ | (ږې | ږ |
| sam | سم | لکه | ( s | (سې | س |
| šəl | شل | لکه | ( š | (شې | ش |
| ṣəl | ښل (زښه) | لکه | ( ṣ | (ښې | ښ |
| ğarma | غرمه | لکه | ( ğ | (غې | غ |
| kar | کر (کشت) | لکه | ( k | (کې | ک |

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| گ | (گې | g ) | لکه | گر (ظلم) | gar |
| ل | (لې | l ) | لکه | لار | lār |
| م | (مې | m ) | لکه | موړ | moṛ |
| ن | (نــن | n ) | لکه | نن | nən |
| ڼ | (ڼـې | ṇ ) | لکه | بڼ | baṇ |
| هـ | (هې | h ) | لکه | هلك | halək |

٣ــ نیمواك (نیم واول) هغه اوازونه دي چې دخپلواکو او بیواکو دواړو دنده پرځاي کوي یا په بله وینا که په یوه څپه کې دزړي یا هستی (حرکت) کارورکړي دخپلواك بڼــه غوره کوي که نه دبیواك . په ترتیب سره لکه په بیل bel اوبیا byu کــس .

دنورو خپلوانو ژبو غوندي پښتو هم دوه نیمواکلري :

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| و | ( w ) | لکه | ور | war |
| ي | ( y ) | لکه | یور | yor |

٤ــ غبرگغبزونه (دیفتونگونه) هغه اوازونه دي چې دخپلواکو اونیمواکو په ملگرتیا منځ ته راځي اولکه پوستوي اوازونه یووارپتــلیز (پیوسته) له خولی راوځي . دیوه غبرگغبز لومړي ټوك یو خپلواك او دویم ټوك یې یو نیمواك اوازوي اوداچې پښتو نیمواك اوازونه دوه دي نوبه دې توگه یې یو ډول غبرگغونه په و( w ) جوړیږي اوبل ډول یې په ي( y ) چې ټول شمیر یې یوولسوته رسي .

لومړي ــ دي( y ) غبرگغبزونه :

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| نرمه یازورواله ي | ay | لکه | سړی | saṛay |
| اي | y | لکه | ځاي | zāy |
| درنه یازورکی والی ئ | y | لکه | مړئ | maṛəy |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| وي | oy | لکه | زوي | zoy |
| ؤي | uy | لکه | بوي | buy |

دويم — د و ( w ) غبرگ ږونه :

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| او | aw | لکه | لو | law |
| أو | w | لکه | کټو | kaṭə w |
| او | üw | لکه | پړاو | paṛüw |
| او | ow | لکه | اوري | owrəy |
| یو | ew | لکه | ایو ( کاه گل ) | lew |
| یو | iw | لکه | تریو | triw |

څپه : څپه — هجا یا سیلابـ هغه اواز غونډ ( فونیمی گروپ ) دي چې یا یو خپلواك وي او یا له یوه خپلواك او یوه یا څو بیواکو څخه جوړ وي او په یو ځایـ ی ډول له خولې راوځي. لکه په ( ادوم ) کې چې دوه زږي ( خپلواکه ) لري لومړۍ څپه ( الف ) او دویمه ( دوم ) ده یا ښخوند sxwand چې یو زږي ( a ) لري او پنځه بیواکه نو یوه او زده څپه گڼل کیږي . څپه هرو مرو مانا نلري د ساري په توگه کور هم یوه څپه ده او هم یو ویی ځکه مانا لري مگر ( اـغیـزه ) په اغیزه کې دریواړه څپې ځانته جلا جلا مانا وي نلري .

خج یا فشار ( اکسینټ ) : خج هغه چار ( عملیې ) ته وایې چې د ژبنیـــز توکونو په لړ کې یو توك په زور او شدت سره وویل شي .

په دي توگه خج په درو ډولو ویشل کیږي :

غونډ له ییـز ( جملوي ) خج — ویيز ( لغوي ) خج او څپیز ( هجا یــي )

خج لکه په ( زه پوهنتون ته ځم ) کې یو غونډ ـــه z ə pohantun ta j ə m.

له ییز خج راغلی او هغه هم پر ( u ) او په یوه وخت کې ویيز خج هم دي ځکه د

غونډلی د نوروو بینو په ترڅ کې یوائځې د (پوهنتون) ویې خج اخیستی او هم څپېزخج دي
ځکه د پوهنتون د دریم ګونو څپو په ترڅ کې یوائځې یوي څپې
خج تر لاسه کړي دي .

## دویمه برخه

### ګړ پوهه (صرف Morphology)

ګړ پوهه د پښتویی هغه برخه ده چې د ګړ ونو (مورفیمونو) له رغاونې اوړ ون (ګرد ان)
او د هغو له ټیلونو (ډولونو) سره کار لري .

ګـړ : ګړ هغه کوچنی د انیز ژبنی توک یا مانیز یوون (واحد) دی چې که وشنل شی
اوازونه تري لاسته راځی اوپه دې توګه خپله مانا له لاسه ورکوي .

خانګـې : ګړ پوهه د ګړ ونو د ډولونو له مخې په دوو څانګو وشل کیږي : یوه
د اوړید ونیو (ګردانید ونکو) ګړ ونو څانګه او بله د نا وړید و نیو ګړ و نو څانګه . د اوړید ونیو ګړ ونو
څانګه بیا دوي برخې را اخلي :

١ـ نوم ګړ پوهه .
٢ـ کړ ګړ پوهه .

نوم ګړ پوهه :

په نوم ګړ پوهه کې د نومونو ډولونه او د هغه اوړ ونونه (ګردانونه) څیړل کیږي .

نـوم : هغه ویې دي چې بې له زمانې اړیکې (د کړ په توپیر) د راز راز څیزونو
او ښکارند و (پدیدو) څرګند ونه کوي لکه تیزه ، لرګی ، سړي ، سړیتوب ، ښایست ، روغ ، روغتیا ،
روغوالی ، زه ، ته ، دي ، یو ، دوه .....

د نومونو ډولونـه :

نومونه پرڅلورو ډلو (ګروپونو) وشل کیږي :

١ـ څیزنومونه (اسماء) .

٢ــ ستاینو مونه ( صفات ) ۰

٣ــ شمیرنومونه (اعداد) ۰

٤ــ نومځیري ( ضمایر ) ۰

دنوم اوړون اړخونه :

نومونه په ټولیز ډول د دری اړخو (وجوهو) له مخې اوړون مومي لکه نوزي ، گڼه ، پیرن خرځلورم ډول (نومځـري) یې پرهغو سرپیره دیوه بل اړخ (وگړي) له مخې هم گردانیږي ۰

١ــ نوزي (جنس) چې نوم نرینه دي لکه گیدړ ، سور اویا ښځینه لکه گیدړه ــ سره ۰

دنرینه نوم نښې : داوروسته نومونه زیاتره نرینه دي :

١ــ چې ورومبی اواز (فونیم) یې بیواك (کنسوننت) وي لکه : کور ، ختیځ ، هلك ، غرـټ ، زیاړ ، هیواد ، غورځنگ ، اږمیږ ، الس ، پټ ، چرگ ، بیدوده (مستثنی) زیاتره دخپلوانو نومونه لکه : خور ، مور ، ترور ، نزور ، ندرور ، ورندار ، تندار : یاهغه ښځینه نومونه چې په رینگ کې زیاتره خپل پای خپلواك غورځوي لکه ښتن ، څنگل ، لار ، ترخځ ۰ همداراز ډز(ډزې) اوممټ ( مثنی ) ۰

٢ــ له زورکي والي ی( ي ) او ـه پرته هرنوم چې په غبرگغږ ( ډیفتونگ ) پای ته رسیدلی وي لکه سړي ــ لرگی ــ ځاي ــ ډاي ــ زوي ــ لړي ــ ښاروندوي ــ پیژندوي (مشهور) بوي ــ خوي ــ کډو ــ لو ــ جړاو ــ پړاو ــ کړاو ــ نیاو ــ لیو ــ تېو ۰

٣ــ هغه نومونه چې په زورکي پایکیږي لکه تره ــ پسه ــ لیوه ــ وراره ــ زړه ۰

بیدوده لکه : خوله ــ دویاله ــ تراه ۰

٤ــ هغه نومونه چې په لنډو ( u ) پای ته رسي لکه چاکو ، ټټو ، یابو اردو (عسکري) ، لاټو ، لاهو ، کاهو ، ماکو ، پتو ، پیښاور (مقلد) ، مانډو ( باجه ) ، ساهو (ازاد) ، بازو ۰

دښځینه نوم نښې : داوروسته نومونه زیاتره ښځینه نښې (پایلې ) لري :

١ــ له زورکي اولنډو ( و ) پرته هغه نومونه چې په خپلواکو ( واولو ) پای ته رسي لکه ادې ، ناوې ، خوږه ولې ، ښادي ، وروري ، ودانې ، ورانې ، ښه ، پزه ، ښځه ۰

رنا، برېښنا، بېديا، لوړتيا، نخا، خلا، ورا، بلا، ژړا، خندا، غلا، ملا (کمر)، شا، ويسا، پښتيانا، اريانا، پيشو، زانگو، درخو، بيو، پيلبو (برېښنا)، شادو، بيزو ...

بېدونه لکه: دادا (پلار)، ماما، کاکا، لالا، بيړا، بډا (مقابل)، بوميا (پيشرا)، هوسا، جليا، مليا (باغوان)، کونا، روندا، سپا، ميلمه، کوربه، غوبه، لربه ...

۲ـ د ـــه په غبرگغږ پاي کېدونکي نومونه، لکه: کټو (کټوه).

۳ـ په زورکي وال ي (غبرگغږ) پای کېدونکي نومونه، لکه: بوډۍ، هوسۍ، کبلۍ (غزال)، شړۍ، مړۍ، اوۍ (کور دخورد)، ډنۍ (کلك دندده)، متهۍ، گډۍ (فاحشه، اربکه، مسند، قنجوغه)، نجلۍ، مخۍ (بدلگري نجلۍ، معما، چيستان)، نتکۍ، شپېلۍ .....

دگڼـــــې (عدد) نښـــــې:

الف ـ د نرينه گڼې (جمع) نښې په داوروسته ډول دي:

۱ـ ان، زياتره هغه نرينه نومونه ډېر گړي (جمع) کوي چې بېواکپاي اوساوالاوي، لکه هلکان، پړانگان، مچان، کبان، چنگابنان.

ځينې خپلواکپاي نرينه نومونه لکه ليوان، تېتوان، اسان (اسونه)، پسان (پسونه) ....

۲ـ ونه، زياتره بيواکپاي بې سا نرينه نومونه ډېرگړي کوي، لکه سيندونه، ډنډونه، ميزونه، کتابونه، لاسونه، نسونه، سرونه، پلونه، خوبونه، بوبونه، توبونه، وربوبونه.

ځينې خپلواکپاي نرينه نومونه لکه ترونه، وريرونه، زړونه، ځينې ساوالا بيواکپاي نرينه نومونه لکه پلرونه.

۳ـ زورکي، ځينې لنډ خپيز او خپلواك (واي) منځي نرينه نومونه ډېرگړي کوي، لکه: خره، غله، دښنه، مله، مړه، وازره، پښتانه، شپانه، خوازه، تراخه (ترخه)، زړه (زړه)، ماغزه.

۴ـ لنډه ي ( ī ) هغه نومونه ډېر گړي کوي چې په نرمه ی ay پاي وي، لکه نرگي، سړي، خلمي، نښتي، غويي، ويي، توکي، پياوړي، روي، گوي (غانبي)، غانبي.

د دي روستاري بلگړ ان اوونه هم لز و ډيرراځي لکه ځلميان غويان وييونـه خوريـــونــــــه ۰

۵ــ يان چې دان بلگړ دي او ځينې غيرګنغزپاي او خپلواکپاي نرينه نومونه ډيرګړي کوي لکه ميرزايان، اشنايان، سويان ۰۰۰۰

٦ــ ګان چې دان يو بل بلګـــړ دي او ځينې خپلـواکپاي نرينه نومونه ډيرګړي کړي لکه سنډاګان، لاټوګان، کدوګان، ټټوګان، ماماګان، کاکاګان، لالاګان، بيړ اګان، پښاګان ( پښا )، بوډاګان ۰

بيدوده لکه ميلمانه، زامن ۰

ب ــ د ښځينه ګڼـې (جمع )نښې په دې لاندي ډول دي :

۱ــ اوزده ( ې )، هغه ښځينه نومونه جمع کوي چې په زوريا زورکی پاي ته رسي ۰ لکه : منـې، پزې، خولې، ولې، وړانګې، خانګې، سانګې (نيزې )، پانګې، ډيوې، شوډې، سکروټې، پلې (پې )، توکې تکالې، غلې، ملې، خرې ۰۰۰۰

۲ــ زورکی واله ( ے y )، هغه ښځينه نومونه ډيرګړي کوي چې په لنډه ي پاي ته رسيدلي وي، لکه ودانې، خپلوې، ښادۍ، ناروغي ۰۰۰۰۰

۳ــ وې wo هغه ښځينه نومونه ډيرګړي کوي چې په الف يا اوزده ( و ) پاي ته رسي، لکه ژړاوې، خنداوې، ملاوې، نخاوې، زانګووې، پيلبوې، ښکالووې، پيــــــرزووې ۰

باګړيې ګانې هم راځي لکه شاګانې، نخاګانې، بريښناګانې، زانګوګانې، بيزوګانې، همدارازورندارګانې، نندرورګانې ۰۰۰۰

٤ــ انې، زياتره هغه ښځينه نومونه ډيرګړي کوي چې پاي ته يې لنډه ي راغلي وي لکه بيبيانې، شاديانې ۰ او ديوې بلې نښې (يندي) دبلګړ په توګه، لکه : ډوبيانې، مزدورانې، ترورانې (ترينديُ)، مورانې (ميندي ) ۰۰۰۰

۵ــ ینډي، هماغه بیواکیایه خپلواك نومونه دي‌ګرګړي کوي‌چې ورسره لنډون‌موس لکه میندي، خوبندي، نږیندي، تریندي ۰

۶ــ صفر د اِمانا چې په زورکې واله ځ باندي پاي‌نومونه بې له کوم نښې د دیرګړي په توګه هم راځي، لکه: کړ کې، چلې، ډوډۍ، څپلۍ، تېړۍ (واسکټ)، بلګړیس (یانې) هم یوڅه دودلري ۰ لکه: کړکیانې، چلیانې، کوچیانې، موچیانې، کبلیانې، کچنیانې، جینکیانې، تروږیانې (تروږۍ) ۰

بې د وده (مستثنی) ۰ لکه: نجونې او نجونه، لوښي ۰

۳ــ پیر (حالت) ۰ چې نوم په خپل چاپېریال (غونډ یاغونډ له) کې څه حالت لري ۰ لکه: پلوشه راغله، پلوشې ډوډۍ وخوړه، د پلوشې ورور ناروغ دي، له یوه لاسه ټك نه خیژي) د لته ګوروچې (پلوشه، یو اولاس) څنګه خپل حالتونه او بڼې بدلوي ۰ په پښتو کې د یوه نوم پیرد ګړوال څار (فعلي عملي) اوو یکو (اداتو) له مخې څرګندیږي او د پیرنښې یې هماغه پایلې یا روستاړي دي‌چې په پاي پوري یې نښلي ۰ نوم‌پیرونه په داوروسته ډولو دي:

۱ــ کړندپیر (فاعلي حالت) لکه: خلمې ډوډۍ وخوړه ۰ خلمی راغی ۰ خلمی ډوډۍ خوري ۰ په د ریواړو غونډو لوکې خلمی کړند پیر لري یا په بله وینا په د ریواړو ځایو کې خلمی کړند (فاعل) دي ۰

۲ــ لنډکړی پیر (بې واسطه مفعولي حالت) لکه: بارك اوبه وڅښلې ۰ بارك پلوشې ته لیکی (کتاب) ورکړ ۰ خوازك پلوشه ووهله ۰ په دي غونډولو کې (اوبه، پلوشې اوپلوشه) لنډکړی (بې واسطه مفعولونه) دي یا په بله وینا لنډکړي پیرلري ۰

۳ــ لرکړي پیر (بالواسطه مفعولي حالت) ۰ لکه: ببرك زمرك ته لیکانې ورکړ سنګ اڅك ته خبره وکړه ۰ غرزي ماته روښی ژبه رازده کوي ۰ په دي غونډو لوکې زمرك

اخك او (ما) لرکړي دي يا په بله وينا دغه د ريوار ه نومونه لرکړي پيرلري او په هغه غږ غږنده لاسو کې (ايکاني، خبره او رومن ژبه) لنډه کړي بلل کيږي . يا په بله وينا دغه د ريوار ه نومونه لنډه کړي دي .

۴ـ لونبسن پير (الي حالت): داماناچي ديوه لونبين يا الي په وسيله يو کار ترسره شوی وي لکه ؛ توريالي په بياتي زيل شو ـ بريالي په ليکاني يو ليك وکيښ ـ گلخانګه په کاشرغه ډوډۍ خوري . په تغرد رو بيلګر کې (بياتي ، ليکاني او کاشرغه) لونبسن يا الي نومونه دي او په دي توګه لونبسن پير لري .

۵ـ تونپير (اضافي حالت) ، هغه نوم چي يو شه وريوري اړه لري ، تولنوم (مضاف اليه) ګڼل کيږي او تول پير (اضافي حالت) لري . لکه ؛ د ويالي اوبه ښې دي . د زمري کور ښکلی دی . د اسمان ستوري په ورځ کې پټيږي . (ويالي ، زمري او اسمان) تولنومونه دي يا په بله وينا دغه د رنومونو تولپير غوره کړي دي .

۶ـ رتون پير (منتهايي يا مفعول منه حالت) . داماناچي يو نوم د يوه کار پيليځ (منشا) ګرځيدلی وي . لکه ؛ له کده ماره راغلم ـ له ښوونه زيږي ـ له بدو وانه زيږي . پدلته (کده ماره ، ښو او بدو) رتون پيرلري .

۷ـ تون پير (ظرفي يا مکاني او زماني حالت) هم دا رنګه مفعول اليه يا استقامتي او معيتي حالت) ، هغه معال نوم يا ځاينوم چي ديوه کار ظرف ګرځيدلی وي او يا ورته يو کار متوجه شوی وي . تونوم بلل کيږي او په دي توګه تون پيرلري . لکه ؛ په کور کې څوك نشته ـ په شپه کې خلك ليږ نګرځي ـ زه د ورځي کارکوم . دلته (کور ، شپه او ورځ) تونپير يا ظرفي حالت غوره کړي دي .

۸ـ بلن پير (ندائيه حالت) ، کا يوه نوم ته بلنه يا غږ شوی وي . بلننوم (منادا) بلل کيږي او حالت ته يې بلنپير وايي . لکه ؛ ای هلکه ! ای خلکو ! واحلميه ! ... (هلکه ، خلکو او حلميه) بلن پيرلري .

یادښت : که یوه نوم په کوم پورتنی پیرکی خپلی بڼی ته بدلون ورکړي وي ۰ او ښتی نوم بدل کیږي یا په بله وینا هغه نوم اوښتی پیر (مغییره حالت) لري او که اوښته یی نه وي موندلی نو ارنوم ورته وایی او حالت یی ارپیر (اصلی حالت) بلل کیږي ۰

دنوم پیر (اسمی حالت) نښی (پایلی) ، زیاتره له ګڼی (جمع) هغو سره سمون لري ۰ لکه څلمی ـ دڅلمی ، پلوشه ـ دپلوشی ، شپون ـ دشپانه ، غل ـ غله ۰۰۰ پرته له ان اووې او د هغو له بلګړونو (لیوان ، سیندونه ، بیبیانی ، شادیانی ، ژړاوې) او د بیواکپایو ښځینه نومونو (میندي) ۰

ډیرکړي (جمع) نومونه بیا په یو مخیز ډول خپل اوښتی پیر په (و) ښیی ۰ لکه : دښځو ـ سړیو ـ هلکانو ـ خویندو ـ بریښناګانو ۰۰۰۰

په دي توګه په ان ، وې ، ونه ، انی ، یندي او د دوي په نورو بلګړونو (الومورفونو) جمع کیدونکی نرینه او ښځینه نومونه له (بلن پیر) پرته نوره او ښتنه نلري ۰ البته په بلن پیرکی بیواکپای نومونه خپل پای په زورونو (فتحو) روستاړي کوي ۰ لکه په هلکه! په موري! په پښتنو! داوښتونکو نومونو فورمول په دي ډول دي :

زه ، ته (دحال مفعولیت پرته) ، دي ، دا ، هغه ، څوک ، سړي ، ښځه ، پښتون ۰۰۰۰

ـ وییکی (ادوات) یادلیزند تیرمهال کړند والی (متعدي ماضی فاعلیت) = ما ، تا ، ده ، دې ، هغه (په زورکی) ، هغی ، چا ، سړي ، ښځی ۰ پښتانه ۰۰۰۰۰

نا اوښتونی (تغییر نه موندونکی) نومونه : ځینی داسی نومونه شته چی په یوګړي بڼه په اتو واړو پیرونوکی کوم جولیز اوښتون (تغییر) نه مومی او هغه دادي :

۱ ـ الف پای نومونه : لکه کاکا ، ملا ، دادا ، پښتیانا ، اریانا ، پکتیا ، سبا ، یما ، کنیشکا ، لوړتیا ۰۰۰۰

روغتیا ، هیله ، ننګ ، پت ، میړانه ، پیاوړیتوب ، رخه (کینه) ، خوښی ، خوږ (درد) ، ویر ، زغم ، اندیښنه ، لوبی ، درناوي ، سپکاوي ، ښیګڼه ، بدي ....

٣ـ ځانګړنوم (خاص اسم): چی یو ځانګړي څیز ، پدیدې ، وګړي یا ځای نوموي ، لکه پښتو ژبه ، پښتو نواله ، خوازك ، زرمینه ، ننګرهار ، کندهار ، پکتیا ، هند ، ایران ......

٤ـ ټولنوم (عام اسم) ، داسی څیز یا ښکارنده نوموي چی ځانګړي او خاص نه وي بلکه ډولونه او څېلونه ولري . لکه ونه ، هلك ، نجلی ، هیواد ، څاروي ، وګړي ، اولس ، تړون ، ژمنه ....  ...

٥ـ نوز نوم (جنس اسم): چی په یوه شمیرید ونکی څیز (جنس) اړه لري . لکه : زر ـ اوبه ـ اوسپنه ـ اور ...

٦ـ غونډنوم (جمع اسم) : چی یوه ډله او غونډه نوموي . لکه : ټولی ، ټولګی ، ګونډ ، ټبر ، ګورم (پاده) ، رمه ......

٦ـ انګینوم (صوت اسم): چی د طبیعی یا صنوعی اوازونو انګی یا انګازه (پژواك) نوموي . لکه : درز . دروز . درزي . درزا . درزهار . ګرب . ګروب . ګربی . ګربا . ګربهار . ترپ . تروپ .....

دویم ـ ستاینوم :

ستاینوم (صفت) چی په خپلواك ډول څه نه نوموي بلکی د یو څه څرنګوالی نوموي یا په بله وینا یو ستاینوم په یوه څیز نوم اړه لري او د هغه څرنګوالی ښیی ، لکه تود ، سوړ ، غټ ، ووړ ، تور ، سور ، ښکلی ، ښایسته ، غښتلی ، کمزوري ، روغ ، ناروغ ....

په پښتو کی ستاینوم د لوړتیاد پوړونو یا د لز والی ، ډیروالی ، سستوالی او تونډ والی بیلا بیلی ښکاره د ریګونی درجی نلري لکه په دري ژبه کی په ـ بهتر ـ بهترین یا بزرګ ـ بزرګتر ـ بزرګترین

له دې کبله یې پښتو ستاینوم د وییکو (اداتو) په ملتیا خپل پوړونه یا درجې
او طبقې ښکاره کوي لکه ښه ــ ډېر ښه ــ لاډېر ښه یا سپین ــ ډېر سپین ــ خورا سپین ــ
ترټولو سپین ــ زښت زیات سپین او داسې نور .

**د ستاینوم ډولونه :**

ستاینوم په دوه ډوله دی ، لنډ او لر .

لنډ ستاینوم ، هغه دی چې تر څیز نوم دمخه او ورسره جوخت راځي او لنډه
په لنډه یې ستایي ، لکه توره ډډه ، روغ سړی ، ښکلې نجلۍ ....

لرستاینوم ، هغه دی چې تر څیز نوم وروسته راځي او له کړوالي برخې (مسند)
سره پیوستون لري . که څه هم هماغه څیز نوم ستایي ، لکه : ډډه توره ده ــ سړی روغ
دی ــ نجلۍ ښکلې ده .......

لرستاینوم زیاتره د کړول (قید) په توګه هم کارول کیږي لکه : هلک پلی راغی ــ
اسمان په ستورو (ښه) ښکاري ــ پلوشه (ښکلې) پرېښي ــ زه کورته (ډیر) ځم .....

**د ستاینوم او ستایلي (صفت او موصوف) ګرداني سمون :**

په پښتو کې ستاینوم (لنډ یا لر) او ستایلي یا هغه څیز نوم چې ستایل کیږي .
د نوم اوړون د د روګونو اړخو (نوزي ــ ګڼې ــ پېر) له پلوه سره زیاتره سمون لري لکه :
ړوند غل ــ ړنده غله ــ ړانده غله ــ ړندې غلې ــ د ړانده غله ــ د ړندې غلې ــ د ړندو
غلو .......

یا په نابشپړ ډول او یا ازتړلزه دیوه یا دوواړخوله پلوه : لکه : لوی غل ــ
لویه غله ــ لوی غله ــ لویې غلې ــ د لوی غله ــ د لویې غلې یا سپین غل ــ سپینه غله ــ
سپین غله ــ سپینې غلې ــ د سپین غله د سپینې غلې ــ د سپینو غلو ....

په دې توګه ځینې ستاینومونه له خپلو اړوندو (مربوطو) څیز نوم‌ونو (ستایلیو) سره بشپړ
اوړون موس او ځینې نیمګړي . لکه په دې لښتیلیک (جدول) کې :

شین خټکـــې — شنه خټکـــې

د شنه خټکـــې — د شنو خټکیـــو

شنه هندوانـــه — شنې هندوانـــې

د شنې هندوانـــې — د شنو هندوانـــو

د ریم — شمیرنوم ( عدد اسم ) :

شمیر نوم هم د ستاینوم غوندې په خپلوا ك ډول کومه نومونه نه کوي بلکې په یوه څیز نوم اړه لري ٠ خـــو د ستاینوم غوندې یې څرنګوالی نه چې څومره والی او پوړ والی (تدرج) ښیي ٠ لکه یو — دوه — دري ٠٠٠٠ یا لومړي — دویم — دریم ٠٠٠٠

د شمیر نوم او شمیر لی ( عدد او معدود ) ګردانی سمون :

په پښتو کې شمیرنوم لکه لنډ ستاینوم ترخپل اړوند څیز نوم ( شمیرلی ) دمخه راځي او ډیر لږ ورسره اوړون مومي ٠ هغه دا چې لومړي دوه (یو) او (دوه) ورسره دنوزي او پیرله مخې ګردانیږي او نور پورته ورسره یواځې دپیرله مخې ، لکه په دې لښتیلیك کې :

| یوغل | یوه‌غله |
| --- | --- |
| دیوه‌غله | دیوې غلې |
| دوه غله | دوې غلې |
| د دوو غلو | د دوو غلو |
| دري غله | دري غلې |
| د درو غلو | د درو غلو |
| څلورغله | څلور غلې |
| د څلورو غلو | د څلورو غلو |
| ٠٠٠٠٠٠ | ٠٠٠٠٠٠٠ |

د شمیرنوم ډولونـــــه :

شمیر نوم داوروسته ډولونه لري :

۱ــ آر شمیر (اصلی عدد) لکه یوــ دوه ــ دري ــ څلور ۰۰۰۰۰

۲ــ پور شمیر (وصفی یا رتبی عدد) چی دخپل شمیرلی پوړ اورتبه ښیی لکــه :

لومړي ــ دویم ــ دریم ــ څلورم ۰۰۰۰۰

۳ــ وور شیمر (کسري عدد) ، چی داړوند څیزنوم (شمیرلی) ماتوالی اوبرخه والی

ښیی لکه دویمه ــ دریمه ــ څلورمه ۰۰۰۰۰

لس (دهه) سل (سده) زر (هزاره) یوډول ګروپ شمیر نومونه دي ۰

٤ــ ویش شمیر (انقسامی عدد) چی داړوند څیزنومونو ویشنه او جوړه جوړه

کونه څرګند وي اوبه دي توګه دوور شمیرغوندي له ډیرګړیو (جمع) څیز نومونو سره اړه لري نه

له یوه سره لکه : یو یو ــ دوه دوه ــ دري دري ــ څلور څلور ۰۰۰۰۰

۵ــ اټکل شمیر (تخمینی عدد) چی دیوه څیز نوم (معدود) پرځاي غبرګ غبرګ څیزنومونه

ښیی ، اوپوهم نه ټاکی لکه : یو دوه ــ یودرې ــ دوه دري ــ دري څلور ــ یولس ــ لس شل ــ

شل دیرش ــ پنځوس شپیته ۰۰۰۰ په دې توګه اړوند څیز نومونه د دواړو شمیر نومونو

ترمنځ اټکیداي اوډمیریداي (انتخاییداي) شی ، یا لومړي یادویم اویا دهغو ترمنځ .

دغه جوړه جوړه شمیر نومونه زیاتره پرله پسی وي لکه یو دوه ــ دوه دري اویاپه یوه ټاکلی

اوعام منلی واټن سره لکه اته ــ لس یالس شل مګر ښایی هیڅ یو پښتون دوه څلور ــ دري

پنځه ــ څلور شپږ ۰۰۰۰ ونه وایی ۰ البته (یو) له هرپورته شمیر سره جوړه کیداي شی

خو هغه هم زیاتره دپیژند (حرف تعریف) په توګه چی اټکل ورسره په څرمه (ضمنی) ډول

هم څرګندیږي ۰

## څلورم ــ نوموړي (ضمير)

نوموړي هغه وي دي چې ديوه نوم ښكاروندوي كوي ، دهغه پرځاي راځي او يا يې ملګرتيا كوي . او دهمدغې دندې له مخې دنومونو په ډله كې ځاينيسي . له نورو نومونو (څيز نوم ــ ستاينوم او شميرنوم) سره دنوموړي توپير دادي چې دا پردروګونو اړخو (نوزي ــ ګنې اوپير) سربيره دوګړي (لومړي ــ دويم اودريم) له مخې هم اوړون مومي . (وينفريد اولرېښ دژپوهنې قاموس ۲۴۹) .

دنوموړو ډلونه : نوموړي دجولي او چارله مخې پردې وروستيو ډلواوډلو ويشل كيږي .

۱ ــ ځانګړنوموړي (شخصي ضميرونه) . چې دوه ډوله دي : غبنتلي ــ كمزوري ؛

الف ــ غبنتلي (منفصل) :

| ګڼه / وګړي | | يوګړي (مفرد) | | ډيرګړي (جمع) |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | | اريسر | اوښتي پير | موږ |
| | | زه | ما | |
| ۲ | | ته | تا | تاسې |
| ۳ | نرينه | دي هغه | ده هغه | دوي هغوي |
| | ښځينه | دا هغه | دې هغې | |

ب ــ كمزوري (متصل) :

| ګڼه / وګړي | يوګړي | ډيرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | مې | مو |
| ۲ | دې | مو |
| ۳ | يې | يې |

۲ــ تولنو مخري (ملكي يا اضافي ضميرونه)، چې تول (ملكيت) اوا ړونډي (متعلقيت) ښيي، دغه نومخري هم پرغښليو او كمزوريوويشل كېږي:

الف ــ غښتلي (منفصل):

| ګڼه / وګړي | يوګــــړي | | ډېرګــړي |
|---|---|---|---|
| ۱ | زمــــــا | | زمـــوږ |
| ۲ | ستــــــا | | ستاســـې |
| ۳ | نرينه | د ده | د دوي |
| | ښځينه | د دې | |

كمزوري تولنومخري كټ مټ دځانګړيو كمزورو هغوغونډي دي لكه:

| ګڼه / وګړي | يوګــــړي | ډېرګـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | مې | مو |
| ۲ | دې | مو |
| ۳ | يې | يې |

۳ــ نغوتنومخري (اشاري ضميرونه) هغه تومخري چې وګړو يا شيزونو ته نغوته (اشاره) كوي او د هغو د نومونو ځاي نيسي او يا ورسره لكه ستاينوم ملګرتيا كوي نغوتنومخري د نږدې ــ ګڼې ــ پېر ــ او يواځې د دريم وګړي او واټن (فاصلې) له مخې اوړونګړي:

| ګڼه / وګړي | | يوګـــړي: اړپېـــر | يوګـــړي: اوښتی پېر | ډېرګـــړي: اړپېـــر | ډېرګـــړي: اوښتی پېـــر |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | لنډ | دغه | دغه | دغه | دغو |
| | | دغه | دغې | | |
| | لر | هغه | هغه | هغه | هغو |
| | | هغه | هغې | | |
| | لالر | هوغه | هوغه | هوغه | هوغو |
| | | هوغه | هوغې | | |

سمیـــــــــن : غرزي کله هار ته ولاړ چې هلته خپلوان وګوري ــ پتنګ په لومړي ګڼـــــــــه ښپالی شوه چې یې زیار ایستلی وه ........

همداراز چیري چې ــ کله چې ــ کوم چې ــ څه چې ــ څوچې ــ څومره چې ..

دواخله لکه په دې غوندې لوکې : غرزي کله هار ته ولاړ چیري چې خپلوان ګوري ــ زه هیواد ته هغه وخت راستون شوم کله چې ډیره وچوبه وه ــ مایو لیکانی واخیست کوم چې ښه کار کوي ــ کار ښه دي څه چې نیکمرغي راوړي ــ پنځه کتابه مې واخیستل څوچې زما په کار وو ــ دومره ښه غنم مې وپیرل څومره چې مې پیرلای شول .....

سمــس ښـــس یې : غرزي کله هار ته ولاړ چې خپلوان وګوري ــ زه هیواد ته هغه وخــت راستون شوم چې ډیره وچوبه وه ــ مایو لیکانی واخیست چې ښه کار کوي ــ کار ښه دي چې نیکمرغي راوړي ــ پنځه کتابه مې واخیستل چې زما په کار وو .....

په دې ډول پښتو له آره همداسي ( چې ) هم داړیک ویکی په توګه کاروي اوهم یو، دا ړیکـــــنومځري په توګه او د پورتنیو پوښتنو ځرو ( څوک ــ کله ــ چیري ٠٠٠٠ ) ملګري کول ورسره بې ځایه دي په تیره په آره غونډه له اړیایه د اسې ځرمه کې چې تر آري وروسته راځي ٠ البته څوک ــ کله چیرې اونورپوښتنو ځري چې له(چې ) سره ملګري کیږي یواځې د اړیکو ییکو (ارتباطي اداتو) چار څرګندوي نه داړیکو ځرو ٠ لکه څه چې کړي هغه به ویبـــــــسي ـ ځنګه غرهس یې کړیوړي ـ هله به خبرشي چې تاروجې له ورشي ــ چیري دي بنـــــــه هلته دي شپـــه ٠ څومره چې ګوړه اچوي هومره خوږیږي ٠٠٠٠٠

٨ــ غبرګون نومځري یا انعکاسي ضمیرونه :

هغه نومځري دي چې ډیره چار هم کړند اوسي او هم کړي په پښتو کې دا راز نومځري نومونو یا ځانګړنو ځروسره د (( ځان )) په ملګري کولو لاسته راځي چې زیاتره په همدي یوه یوګړي ( مفرده) بڼه هرځاي را تلاي شي لکه : ځلمي ځان ژوبل کړ ــ ځلمي او زمري ځان (ځانونه) ژوبل کړل هغه ځان ژوبل کړ ــ هغوي ځان ( ځانونه) ژوبل کړل ٠ دپوره څرګندتیـــا لپاره له ځان سره (خپل )هم ملتیا کوي لکه هغوي خپل ځان ززغوره ٠

٩ــ ناټیکمنو ځري (ابهامي ضمیرونه) : چې ډیوه ناجوت (نامعین) وګړي یا شیز لپاره راځي او د بیلا بیلو ډندو له مخې په لاندي ډولو دي :

ــ هر ٠ چې زیاتره په یوګړي اړه لري او ډنوزي او پیرله مخې لږ ډیراوړون لري ٠ لکه هر ځلمي ــ هره پیغله ــ هرخت ( کمیس ) ــ هره ګنډ ( کرتي ) ــ هري پیغلې ٠ په اوښتي ډیرګړي کې لکه هرو پنځوشاګردانو ته یو یو لیکې ورمید ٠ یا ژره په هرو دوو اوونیوکې سینمـــاته ځم ٠

ــ بـــــــل : یواځې د شمیرید ونکې یوګړي نوپیرځاي راځي او یا ورسره د نغوتنر ځري غوندي ملګرتیا کوي ٠ لکه : بل ځلمي ــ بله پیغله ــ د بل ځلمي د بلې پیغلې ٠٠٠

ــ نور : یزاځی د ډیرګړي یانوز نوم (جنس اسم) ښکارندوین اوملګري کوي

اوځه ناځه اوړون لري لکه نور هلکان . ـ نوری پیغلی ـ نورغنم ـ نوره وسپنه ـ نوره خاوره ـ

نورې اوبه ـ دنورو هلکانو ـ دنورو پیغلوـ د نورو غنمو ـ دنورې وسپنې ـ دنورې خاورې ـ

دنورو خاورو ـ دنورو اوبو ......

ــ ټــــول : دنورغونډې په ډیرګړي او نوز نوم اړه لري اوله لویدیزي پښتو

پرته هماغسې اوړون مومي لکه ټول هلکان ـ ټولې نجونې ـ ټول تیل ـ ټوله خاوره ـ

ټولې خاورې ـ ټولو هلکانو ـ د ټولو هلکانو ـ ټولو نجونو ـ د ټولو نجونو ـ د ټولو تیلــو ـ

د ټولې خاورې ـ د ټولو خاورو .......

ــ واړه : د ټول همانیزدې خوباځی د نوزي او پیرله مخې اوړون او اوښتون

مومي ـ لکه واړه هلکان ـ واړې نجونې ـ واړو هلکانو ـ واړو نجونو ـ واړه خاوره ـ

واړې خاورې ـ دواړې خاورې ـ دواړو خاورو .......

ــ دواړه : ټل دوګړي (تثنیــه) دي او د (واړه) غونډې په نوزي (جنس) اوپیر

اړه نلري لکه : دواړه هلکان ـ دواړې نجونې ـ دواړو هلکانو ـ دواړو نجونو ..

ــ څه : پر ... بروښتنو مخري سربیره یو ناوړیدونې ناټیک نومخري هم دي لکه :

څه مې ولیدل څه نشته ـ چېـې نه کار هلته څه کار . څه له نورو ناټیک نو مخرو او ځینو ستاینو

مونو سره تړښتې ناټیک نومخري جوړوي لکه : بل څه ـ نور څه ـ هرڅه ـ هیڅه (هیڅ څه)

لږ څه ـ ډیر څه . همدا رنګه له پیژند (ینو) سره لکه یو څـــــه .

ــ څــو : هم پرپوښتنو مخري سربیره یو ناوړیدونې ناټیک نومخري دي لکه :

څو پیسې مې په کار دي ـ څو میاشتې په کار دي چې زه کتاب ولیکم . څو له پیژند او ځینو

ناټیک نومخرو سره تړښتې ناټیک نومخري جوړوي لکه : یو څو ـ هر څو ـ هیڅو (هیڅ څه) ...

ــ ځینې : د ډیرګړي او نوز نوم ښکارندوین کوي لکه ځینې شاګردان ځینې شاګردانې

ځینو شاګردانو .....

ــ هیڅ : دیوه ناټاکلی څیزیا څیزونو نشتوالی ښیي او کوم اوړ ون نلري . لکه :
هیڅ ملك ، هیڅ هلکان ، هیڅ نجلۍ ، هیڅ نجونې ـ ـ هیڅ هلکانو ـ هیڅ نجونو
هیڅ غنم ـ هیڅ غنمو . . . . . له پیژند(یو ) او زیاترو ناټیك نومځرو سره دلومړي ټوك
په توګه تړ ښتی ( ترکیبی ) ناټیك نومځري منځ ته راوړي لکه : هیڅ یو ـ هیڅه ـ هیڅو ـ
هیڅو مره ـ هیڅ کوم ـ هیڅ بل ـ هیڅ نور ـ هیڅوك ـ هیڅکله ـ هیچیري ( هیڅ چیري )
هیڅ دواړه یاپه دري ټوکیز تړ نګ ( دري جزئی ترکیب ) کی لکه : هیڅ کوم یو ـ هیڅ کوم
څوك یاپه څلورو ټوکیز تړ نګ کی لکه : هیڅ کوم یونیم ـ هیڅ کوم یوبل . . . . . .

ــ څوك : هم پوښتنو مځري ( او اړیکنو مځري ) سربیره یوناټیك نومځري
هم دي چی هم د څیزنوم ښکارندویی کوي اوهم د پیژند ( ارتیکل ) لکه : نن څوك راغی ـ
څوك یوکار کوي ، څوك بل ـ چامی لیکانی واخیست ـ څوك سړي راروان دي ـ څوك ښځه
می ولیده . په نورو پیرونو کی لکه : چاته می لیکی ورکړي دي خراوس می هیردي ـ له
چانه می لیکی واخیست بیامی هیرشو ـ خپل کار په چانه کوم ـ ځلمی له چاسره پروه لارنه ځی
زه څوك نه وهم ـ پرچا کارنلرم ـ څوك چی بل چاته کوهی کینی . پخپله پکی لویږي ـ
له ماسره د چاځه کاردي په شپه کی چاته ورتګ ښه نه دي . . . . . .

له پیژند ( یو ) او ځینو نورو ناټیك نو مځرو سره هم تړ ښتی ( ترکیبی ) ناټیـــك
نومځري جوړ وي . لکه : یوڅوك ـ هرڅوك ـ هیڅوك ـ بل څوك ـ نور څوك ـ څوك سړي ـ
کوم څوك ـ کوم چا یا لکه پښتو ریان چی وایی : چا ظالم می ژبه پریکړه .

ــ سړی : پرڅیزنوم او ستاینوم سربیره یوناټیك نومځري هم دي اوتر بلن پیره
پوري په ټولو پیرووکی راځی لکه سړی دي هڅه کوي چی څوك تري ونه ځوریږي . بایـد
له سړي له لاسه داسی کارونه شی چی وروسته پري پښیمان شی ـ دلته د سړي هره هیله
نه پرځای کیږي سړی دي سړي ته ګوري او بیادي ورسره هماغسی چلند کوي . لومړي دي
سړی سړي ته پوزنه ورکوي او که وریی کړ بیادي تري ژرنه غواړي ـ وسړیه ستاله چاسره
څـــه کار ! له پیژند (یو) او ځینی نورو ناټیك نو مځرو سره تړ نګونه ( ترکیبونه ) هم

جوړوي لکه یو سړی د یخوات را د زوړی ـ یوه سړي ته رازویل په کارنه دي ـ هرسړي (خو هر سړي پیدا دي خپل خپل کار لره کنه ـ خوشال) ـ هیڅ سړي نه بنکاري ـ سړي سړي سم کارته نه پریږدي ـ له خوازك پرته بل سړي مې ونه لید ـ څوك سړي زموږ خواته راځي ـ کوم سړي چې د سړي نه خوښیږي شه په کار چې پرمخه ورځي ـ څه سړي غزني را د روي . یو نیم سړي خپل ژوند ته پام نلري ـ کوم نیم سړي مې ونه لید ـ کوم یو نیم سړي راتخي . . . . .

ـ پلانی او بیستانی هم له عربي او دري (فلان ـ بستان) څخه پښتوشوي ناټیك نومځري بنکاري . . . . . .

ـ ګډ تولنومځـــري (اشتراکی ضمیر) : پښتو دري غوندي له ((خپل)) څخه پرتوروپلووسوبیره لیږه تولنومځري (ملکی ضمیر) کار هم اخلی او داچې د درووار و وګړو لپاره راځي نو ګډ تولنو مځري (مشترك ملکی ضمیر) بلل یې غوره دي . لکه : شپون خپله رمه پیاییي ـ ره خپل شپانه پیږوله ـ هرڅوك په خپل کار کې خوښ دي ـ ځینې خلك خپل ځان نه پیژني ـ ځلمي په خپله خونه کې کار کوي ـ خوازك خپل کورته ناوخته ځي ـ خوازك له خپل ورور سره بنازته ولاړ ـ بزي له خپلو ملګرو څخه مننه وکړه ـ بریالی له خپلې خوښې څخه نه اوړي . ځینې پخپله ګناه نه پوهیږي خپل زړیږند او ناټیك ستاینوم په توګه هم کارول کیږي لکه خپله لامه کله الامه ! چې بیا هم پکی د تول (ملکیت) جاج (مفهوم) پروت دي . په تکراري ډول لکه په مخنی بیت کې (هو هرسړي پیدا دي خپل خپل کار لره کنه) خپل د نوزي او بیرله مخی بشپړ اوړون لري . خود ګډنهس له مخی نه . له ((ځان)) سره غبرګون نو مځري جوړوي لکه خپل ځان بې زوبل کړ او له دې سره سره هماغه تولوالی او پیژندوالی ډنډه هم شرګندوي ؟

ـ تول ـ ځانګړي نومځري (شخصی ـ ملکی ضمیرونه) چې دغښتلـیوتو لنو مځرو او غښتلیو ځانګړو یا نغوتنو مځرو په یوځای کیدو سره جوړیږي اوبه دي توګه پریووخت

د دوو دوو نومځرو دنده پرځای‌کوي له همدي کبله دوه اړخیزاوړون لري او هغه هم د نوزي ـ گڼه ـ پیراو وګړیله مخې چې ځانګړي ورسره یواځې په دریم وګړي اړه لري .
لکه :

۱ـ تول نومځري ـ یوګړي ځانګړ نومځري :

| گڼه / وګړي | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | هغه<br>هغه<br>زما دي ـ هغه ( ده ـ هغه )<br>زما دا ـ هغه ( دې ـ هغې ) | زموز دي ـ هغه ( ده ـ هغه )<br>زموز دا ـ هغه ( دې ـ هغې ) |
| ۲ | ستا دي ـ هغه ( ده ـ هغه )<br>ستا دا ـ هغه ( دې ـ هغې ) | ستاس دي ـ هغه ( ده ـ هغه )<br>ستا دا ـ هغه ( دې ـ هغې ) |
| ۳ | د ده دي ـ هغه ( ده ـ هغه )<br>د هغه دي ـ هغه ( ده ـ هغه )<br>د دې دا ـ هغه ( ده ـ هغې )<br>د دې هغه ـ هغه ( ده ـ هغې ) | د دوي دي ـ هغه ( ده ـ هغه )<br>د دوي دا ـ هغه ( دې ـ هغې ) |

۲ـ تولنو مځري ـ ډیرګړي ځانګړ نومځري :

| گڼه / وګړي | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | زما دوي ـ هغوي | زموز دوي ـ هغوي |
| ۲ | ستا دوي ـ هغوي | ستاس دوي ـ هغوي |
| ۳ | د ده دوي ـ هغوي<br>د هغه دوي ـ هغوي<br>د دې دوي ـ هغوي<br>د هغې دوي ـ هغوي | د دوي دوي ـ هغوي |

٣ـ تولنو مخري اتله يوګړي نغرتنو مخري :

| ګڼه / وګړي | يوګړي | ډيرګړي |
|---|---|---|
| ١ | زما دغه ـ دغه ـ دغې | زموږ دغه ـ دغه ـ دغې |
| ٢ | ستا دغه ـ دغه ـ دغې | ستاسې دغه ـ دغه ـ دغې |
| ٣ | د ده دغه ـ دغه ـ دغې | د دوي دغه ـ دغه ـ دغې |
| | د هغه دغه ـ دغه ـ دغې | |
| | د دې دغه ـ دغه ـ دغې | |
| | د هغې دغه ـ دغه ـ دغې | |

٤ـ تولنو مخري د ليري ګړي نغرتنو مخري :

| ګڼه / وګړي | يوګړي | ډيرګړي |
|---|---|---|
| ١ | زما هغه ـ هغه ـ هغې | زموږ هغه ـ هغه ـ هغې |
| ٢ | ستا هغه ـ هغه ـ هغې | ستاسې هغه ـ هغه ـ هغې |
| ٣ | د ده هغه ـ هغه ـ هغې | د دوي هغه ـ هغه ـ هغې |
| | د هغه هغه ـ هغه ـ هغې | |
| | د دې هغه ـ هغه ـ هغې | |
| | د هغې هغه ـ هغه ـ هغې | |

٥ـ تولنو مخري د لا ليري ګړي نغرتنو مخري :

| ګڼه / وګړي | يوګړي | ډيرګړي |
|---|---|---|
| ١ | زما هوغه ـ هوغه ـ هوغې | زموږ هوغه ـ هوغه ـ هوغې |
| ٢ | ستا هوغه ـ هوغه ـ هوغې | ستاسې هوغه ـ هوغه ـ هوغې |
| ٣ | د ده ،، ،، ،، | |
| | د هغه ،، ،، ،، | |
| | د دې ،، ،، ،، | |
| | د هغې ،، ،، ،، | |

او همداسي د دويم توك ډيرگړي هم اوړون مومي ٠ دادي د تول ـ ځانګړنومځرو د پوره ځرګند تيا لپاره څو بېلګيزي غونډ لي (جملي) وړاندي کوو :

ايمل : زما زوي ناروغ دي ٠

خوشال : زما هغه هم ناروغ دي ٠

ايمل : زمازوي ښوونځي ته ځي ٠

خوشال : زمادي لا کوچني دي ٠

ايمل : زما وراره ښوونځي ووايه ٠

خوشال: زما هغه هم ووايه ٠

ايمل : زما ماما اس واخيست٠

خوشال : زما هغه هم واخيست ٠

ايمل : زماورور ځلمي ته يو ليکي ورکړ ٠

خوشال: زماده هم هغه ته يو ليکي ورکړ ـ زما هغه هم هغه ته يوليکي ورکړ ٠

ايمل : زماليکي ځلمي واخيست٠

خوشال : زما دا زمري واخيست ـ زما هغه زمري واخيست ـ زما دا هم ده واخيست ـ زما هغه هم هغه واخيست ٠

ايمل : زما ورځني ګټه سل افغاني ده ٠

خوشال : زمادادوه سوه افغاني ده ٠

ايمل : دده کور لري دي ٠

خوشال: دده دا نژدي دي ـ د ده هغه هم لري دي ٠

ايمل : دهغه مور ناروغه ده ٠

خوشال : دهغه هغه هم ناروغه ده ـ دهغي هغه هم ناروغه ده ٠

ايمل : ددي ورور زما ټولګيوال دي ٠

خوشال : ستادي بيا زما ټولګيوال دي ٠

ایمل : زما مور وپلار مړه دي .

خوشال : ستا هغه ژوندي دي .

ایمل : زما موروپلار کوم رسمي کار نه کاوه .

خوشال : زما هغوي هم نه کاوه ( زما دوي هم نه کاوه ) .

ایمل : زموږ کلی له ښاره لرې دی .

خوشال : زموږ دا هم له ښاره لرې دی .

ایمل : زموږ هغه دومره لوی نه دی .

خوشال : زموږ دا ستاسی له هغه څخه ډیر لوی دی .

ایمل : د دویم ټولګي شاګردانو کتابونه نه دي اخیستي .

خوشال : د لومړي ټولګي هغوي هم نه دي اخیستي .

ایمل : د دریم ټولګي شاګردانو خپل کتابونه بیرته ورکړي دي .

خوشال : د څلورم ټولګي هغوي خپل هغه بیرته نه دي ورکړي .

## لومړي کړاوونـــه ( تمرینونـــــه )

١ـ ښوونه یا ګرامر د ژبپوهنې کومه څانګه ده او له څه نه غږېږي ؟

٢ـ ښوونه د څه لپاره لوستل کېږي ؟

٣ـ ښوونه کومې څانګې را اخلي ؟

٤ـ غږ پوهه څه ته وايي ؟

٥ـ د ژبې لومړنۍ ساده توکونه کوم دي ؟

٦ـ د پښتو ارزښتناک غږونه یا اوازونه پرڅو ډلـو وېشل کېږي ؟

٧ـ نیمواک اوازونه څو دي او څنګه پېژندل کېږي ؟

٨ـ خج څه ته وايي او پرڅو ډوله دی ؟

٩ـ ایا خج په ماناکې ونجون ( بدلون ) راوړلای شي ؟

١٠ـ د لاندې ټوټــه په غږيزه ( فونیمیکه ) ابېڅــې ولیکئ او خجونه یې ښه کړئ !

داخوجوته او منلې خبره ده چې پښتو د پښتونخوا یوه بډایه او لرغونې ژبه ده چې د زرګونو کلونو په اوږدو کې پرې پوهول را پوهول شوي دي . ډېر پوهان او لیکوال پکې منځ ته راغلي دي . که څه هم ډېري تودې سرې پسې لیدلي دي ، خو بیا هم د یوې غږنۍ ژبې په توګه کروړه پاتې شوې او په هر تورتم پسې یې رڼا راغلې ده . دا په ټینګه ویلای شو چې نن سبا پښتنی ټولنه راخوځیدلې ده او له دې خوځون سره به یې ژبه هم هرومرو مخ پروړاندې درومي .

## دویم کراوونـــه

۱ـ گړ پوهه له څه نه غزیږي ؟

۲ـ گړ پوهه لومړي پرکومو دوو څانگو ویشل کیږي ؟

۳ـ داورېدونو گړ پنو څانگه کومې برخې را اخلي ؟

٤ـ نو مگړ پوهه له څه نه غزیږي ؟

٥ـ دنوم اوړون ( اسمی گردان ) اړخونه کوم دي ؟

٦ـ نومځري ( ضمیر ) دڅو اړخو له مخې اوړون مومي ؟

۷ـ نوم څه ته وایی او کومې څلور ډلې را اخلي ؟

۸ـ څیز نوم او ستاینوم سره څه توپیر لري ؟

۹ـ نومځري څه ته وایی او په پښتو کې پرڅو ډلو ویشل کیږي ؟

۱۰ـ په لاندې تړڅه کې هره ډول نوم ښیـه کړي او ونوموئ :

بارک له ما څخه یو لیکې وغوښت ، خو ما ترې وژغوره ، ځکه تولگی یې را څخه بیل دي ، په ښوونځی کې د ، د ، دادریم کال دي او زما دادویم . له یوه تولگیوال سره یې هم چال چلند سم نه دي . دي خورا چڼلگردي او دبوه بل خبریال ؟ دیوه خبره یوه ته وړي او دبل بل ته . کله یې له یوه سره اخ ولاب وي او کله یې له بل سره . څوك ترې آرام نه دي له هرچا سره چې یو ځل کښیني بیـا یې نوروته ویاراوېدوایی . دغله په غره کې ځای نشتـه . پرېدبوتـی سپی هم متیازې نه کوي . هرسړي ته په کاردي چې خپل کارته پام ولري او دبل په کار کې ځان گډ نه کړي . زینښیاران وایی :

دخواري کونډې زویه ـــ خپلې روټـی ژویه !

## دکړ ګړیوهه یا دفعل صـــرف ( CONJUGATION )

په کړ ګړیوهه کی دکړ له راز راز ډولونو او اوړونو (ګردانونو) څخه خبري کیږي ۰

کـــــــړ : هغه وی (لغت) دي چی د زمانی په چوکاټ کی دیو څه پیښیدنه څرګندوي ۰ داچی دکړ جاج (مفهوم) بی د زمانی له ملګرتیا نه پوهید ل کیږي نو څکه کړ ته مهال وی (دزمانی لغت) هم وایی ۰

کړنو موونکـــــی :

په پښتو کی یو کړ په مصدر (ناپای) نومول کیږي له همدي کبله مصدر ته کړنو موونکی وایو ۰ په عربی کی یو کړ دخپل تیر مهال (ماضی) د لومړي وګړي په یو ګړي ځیل (مفرده صیغه) یادیږي لکه ضرب ــ نصر ۰ پخوا په المانی او پارسی کی کړنو موونکی پخپله دکړ ریښه وه خو اوس په دغو دواړو ژبو کی دپښتو غوندي یو کړ دخپل مصدر په نامه نومول کیږي لکه :

تون ــ کردن ــ کول ۰۰۰۰۰ دمصدر جوړښت او دنده : په پښتو کی یو مصدر په یوه یوګړیز (یمورفیمز) روستاړي (ل) پیژندل کیږي ۰ دغه روستاړي په کړ ولی (فعلی ریښی) پوري سیده نښلی په دي آړ (شرط) چی کړ ساده یا په بله وینا یو ګړیز یا یمورفیمیزوي او که بیلښتی او تړښتی (اشتقاقی او ترکیبی) زي نو مصدري روستاړي (ل) په مونډ (تی) پوري نښلی ۰ سیده په کړ ولی پوري لکه : موندل ــ وهل ــ خوړل په مونډ پوري لکه : غورځول اوبول ــ کښیناستل ــ پریوتل ــ یو ځای کول ــ لاسته راوستل ــ تود تود کیدل ــ نیغ نیغ کیدل پخلا کیدل یا کول ۰۰۰۰۰

دمصدر دنده هم داده چی یو کړ ونوموي ، کټ مټ لکه ونه ــ ډبره ــ سړي ــ کندهار ۰ داچـــــی مصدر دیو څه کړنه او پیښیدنه څرګندوي نو دکړنی او پیښیدنی نوم دي نه پخپله کړ څکه په زمانی پوري اړه نلري ۰ داچی دودیزو (عنعنی) ژبپوهانو مصدر له خپلی وییزي (لغوي) مانا سره سم دکړ دبیلا بیلو بڼو (زیږنده) او یا بنسټ بللی دي یوی سرو وله

خبره ده • دکړ بنسټ هماغه کړولی (فعلی ریښه) یا کړ سوند (فعلی تنه) ده چــــــــــــن

پــلـــه مضارتري د (ل ) پــــه ورښلـــــــرلـــــو جوړیــــــــــــــــږي •

که مصدر په رښتیا سره د ټولو فعلی بیلو نو او بنوونسټ اوزبزنده وای نو باید په هره بنـه

کی روغ رمټ پاتیدای حال دا چی موږ گورو چی یوائی کړولی (فعلی ریښه) یا موندی (فعلی تنه)

پههره بنهـه کی خپل شتوالی ساتلای شی لکه وهـ په وهم ــ وهو ــ وهې ــ وهی • ــ وهي

یا وواهه ــ واهه ــ وهلی دي او داسی نوروکی•له دي کبله د مصدر ریځای کړ نوم یا کړ نوموونکی

ول په کار دي ځکه همغه یی دنده ده د (ناپای) په نامه یی یادول چی دلاتیـــــــن

(INFINITIVE) اړونه ده • هم دومره ناوړه نه ایسی ځکه یوه ناپایه او ناټاکلی

کړنه او پیښیدنه څرګندوي او نوموي ، نه په وګړي اړه لري ، نه په زمانی او داسی نورو ګردانی

اړخونو • که د مصدر نوموونه پرکړنوم واړوو • بنایی له نورو ډیرو کړنو مونو سره یی ګډ ون راشی

لکه خوړنه ــ خوړانه ــ خوړنګ ــ خوړونکی ــ خوړلی ــ خوړ ــ خوړ ــ خورنده ــ خورندي ــ

خورکه او داسی نور چی دخوړل غوندي له خوړ او خور ولی (ریښی) څخه جوړ شوي دي •

پښتو مصدر دیره نوړه توګه تل ډیرګړي نرینه دي اوپوائی د پیر (حالت) له

مخی اوړون مومی لکه ډیرو (لوستلو) ستومان ګړم یا دعبدالقادرخټك په شعر کی :

مه شه خوښ دپادشاهی پرتخت (ختلـــو)

همیشـــه یی غم کوه د (پریوتلـــــــــو )

دکړ او ړونی توکونه او اړخونـــــه :

یو اوړون موندلی (ګردان شوي) کړ تردیالسو توکونو پوري په جولیز اونکاره

ډول یانانکاره ډول په خپل ځان کی ځایولای شی چی څه ناڅه دهماغو له مخی رازرازینــی

او اوړون مومی او هغه توکونه دادي :

۱ــ مخکړ : چی دکړیو بشپړوونکی او پلو ټاکونکی توك (جز•) ګڼل کیږي لکه

کښــی ــ په کښیناستل او کښی وتل اوري ــ په پریوتل اوپریوللی یاپریښځل کی •

۲ــ ولی یا ریښه : چی د کړ رښتینی بنسټ دي لکه خوړ ــ یا خوړ ــ
په خوړم ــ خوړو ــ خوړي ۰۰۰۰ او وخوړ ــ خوړ ای ــ خوړ لی او داسی نورو کی ۰
ولی پردوو ډولو ده : یوه لومړی یا اوسمهال ( حال ) ولی لکه خوړ ــ اغوند ــ
بله دویمه یا تیرمهال ( ماضی ) ولی لکه خوړ ــ اغوست ــ دواړي ولی په ګڼه دیوه راز کړ
اوړون ( ګردان ) بشپړوي او سترمهال کړ ( مستقبل فعل ) کومه جلا ولی نلري بلکه هماغه
اوسمهال ولی یا لومړی ولی ورسره شریکه ده ۰ دویمه ولی پردي سربیره چی ګرد تیرمهال
کړونه تري جوړیږي د اوسمهال او اوسترمهال بیچار کړونه ( مجهول افعال ) هم تري جوړ ښت
مومی ۰ کړنومونه بیا له دواړو ولیو څخه لزوه یرمنځ ته راځی د کړنومونکی یا مصدر جوړ ښت زیاتره
تیرمهال ولی څخه دوی لري لکه خوړل ــ لیدل ــ تلل ۰ دلته لیدل له لید ــ ولی څخه
جوړ شوي چی دویمه یا تیرمهال ولی ګڼل کیږي او لومړی یا اوسمهال ولی یی ( وین ــ )
ده د دغو ولیو پارس اندولونه دید ــ او وین ــ دي ۰

۳ــ مونــــډ : چی دمخکړیا ولی اووګړیزي پایلی ( شخصی خاتمی ) ترمنځ
ټبل کوم توک په یو ځای کولو منځ ته راځی په بله وینا که له یوه تیرمهال ګردان شوي کړ څخه
وګړیزه یابله کومه پایله وغورځول شی ۰ پاتی برخه یی مونډ بلل کیږي ۰ په دي توګه مونډ زیاتره
د تیرمهال کړ بنسټ جوړوي او په اوسمهال کی په ساده ډول له صفر سره یا ولی برابر دي لکــــه :
کښیناست ــ په کښیناستم یا کښیناستو او زبږید ــ په زبږیدم ــ زبږیدو وزبږیدم ــ وزبږ دو
وزبږیداي یا اغوست ــ په اغوستم ــ اغوسته ــ واغوست ــ ۰۰۰۰۰ کی ۰ د اوسمهال مونډ
لکه څملو په څملوم ــ څملوو ۰۰۰۰۰ کی ۰ که په ځینو ګړدودوکی کښیناستلم ــ کښیناستلــــو ــ
زبږیدلم ــ زبږیدلو ــ وزبږیدلو ــ او داسی نور ویل کیږي نو مونډ یی بیاکښیناستل ــ او
زبږیدل ــ راځی ۰ البته په ځینو ګړدودونو کی دغه راز ( ل ) د مونډ ضروري توک ګڼل کیږي
او غورځول یی مانیزه نیمګړتیارا ولی لکه ماویاله وکینله ماسندره وویله ماوزمه ورتله ۰۰۰ مګر
که وکینده اوولوسته وویل شی مونډونه یی هماغه کیند او لوست راځی ۰

٤ــ کړتـــــر : چې زیاتره دیوه خپلواك اواز په بڼه دمونږ اووګړیزي پایلــــن ترمنځ کله کله پیښیږي لکه زورکی په کښیناستم او پرېوتم کی ۰ مونږ پرمخکړ اوولږ سرییره دڅیل ( ٦ ) لیزد، ( ۷ ) مهال ( ۸ ) اولیږزند چار( ۱۲ ) ترکونه او چارونه هم را اخلی ۰

٥ــ دود : چې دکړ دڅرګندولو ډول ښیــی لکه خبري او ناخبري(غوښتنـــې ـــ پوښتنی ـــ هیښنی ـــ امري ـــ ارمانی ـــ ګومانی ـــ ټینګاري یا تاکیدي ـــ شرطی همیشنی ـــ ورزدنی یا اعتیادي) لکه : ماډوډۍ وخوړه وخوړ اي ـــ وخوړه ۰ اوداسی نور ۰

٦ــ څیـــــل : چې دکړ (مسند) او کړندیاکړي (مسند الیه) ټاکه کوي ۰

په دې مانا چې کړ چاروال (معلوم) دي که بیچار (مجهول) اویا منځوال (انعکاس). چاروال لکه ببرك زمري وهی ـــ زمرك وهل کیږي ـــ زمرك ځان وهی ۰ په لومړي غونډ له (جمله) کښ کړ په کړند (ببرك) استناد کوي په دویمه کی په کړي (زمرك) او په دریمه کی هم په کړند اوهم په کړي چې دواړه هماغه یو وګړي (زمرك) دي ۰ څیل په جولیز اوناجولیز ډول دمونږ وتوك دي ۰

۷ــ لیز د : په دې مانا چې کړ لیزند (متعدي) دي که نالیزند (لازمی) لکه سمندر سندري وایی او سمندر راغی ۰ لیز د په جولیز یا ناجولیز (غیر شکلی) ډول دمونږ یوه برخه جوړ وي ۰

۸ــ مهـــــال : چې دکړمهالی یازمانی اړیکي (ارتباط) څرګند وي په دې مانا چې کړ په کوم مهال کی پیښ شوي دې لکه څوکري ولاړ ـــ څوکري ځی ـــ څوکري به ولاړ شی ۰ دپښتو کړ مهالونه په تولیز (عمومی) ډول دري دي :

۱ــ تیرمهال : چې په بشپړ ـــ نابشپړ ـــ لنډ او لروبشل کیږي ۰

۲ــ اوسمهال : چې په بشپړ اونابشپړ وشنه مومی ۰

۳ــ اوستر مهال : چې داهم دوه ډوله لري بشپړ اونابشپړ ۰

دمهال توك په مونږ کی راځی لکه په ودریدم یا ودریدلم کی ( د ) یا ( دل ) او په ودریږم یا ودریږ وکی ( ږ ) ۰

۹ــ وګړي یا شخص : چې کړند یا کړي لومړي وګړي (متکلم) دي دویم وګړي (مخاطب) یا دریم وګړي (غایب) ... لومړي وګړي (زه ــ موږ) ــ دویم وګړي (ته ــ تاسو) او دریم وګړي (دي ــ دوي) . د وګړي نښې چې وګړیزه پایله بلل کیږي د کړو روستي برخې جوړوي لکه (م) او (و) په راغلم او راغلو کې .

۱۰ــ نوزي یا جنس : چې وګړي نرینه دي که ښځینه . په پښتو کړ کې یوازې د دویمې ولې په اوړون کې دغه توپیر کیږي لکه شینګی راغله ــ ژبې راغی چې دلته (زور) اوي نوزیز توکونه دي په دې توګه نوزیز توک له وګړیزي پایلې او ګډې سره ګډ اویای ته راځي .

۱۱ــ ګڼه یا عدد (افراد وجمع) : چې وګړي یو ګړي (مفرد) دي او که ډیرګړي (جمع) . یوګړي لکه هلک راغی ډیرګړي لکه هلکان راغلل . ګڼه یوازې په لومړي او دویم وګړي کې توپیریږي نه په دریم کې لکه هلک ځي ــ هلکان ځي .

۱۲ــ لیږند چار یا صناعیت (کوزاتیف) د کړ هغه برخه یا توک دي چې په مونږ کې راځي او یو لیږند کړ دویم ځلې لیږنده (متعدي) کوي لکه د پارسي په خوراندن یا خواباندن کې (ان) پښتو سمدلاسه د ننګرهار ګړ دود او خوشال ختک په استاد یوازې د وه لیږند چار کړونه لري لکه خوړل (خوراندن) او ویېل (ګویاندن) . په نورو کړونو کې دغه راز ځرګندونه یوازې د بیکو (اداتو) په وسیله تر سره کیږي لکه ما پرخلمې خیله خبره ومنله (من برخلمی سخن خود را قبولاندم) په دې توګه یو لیږند چار کړ دوه کړنده (فاعله) او دوه کړیه (مفعوله) لري .

لکه په پورتني بیلګه کې ما او خلمې کړندونه او خبره کړی ده او په یو مثال کې بیا خلمې او خبره دواړه کړي دي . ځینې حکمي لیږند کړونه بې له بیکو هم د لیږند چار دنده پرځای کوي لکه ماوژړوله ــ ماوخندوله او داسې نور . یا داسې هم ویل کیږي : خلمې د ورخانې په خبرو راوسته مانا دا چې خبري یې پرې وکړي .

۱۳ــ د نفي یا نهي توک (نه) یا (مه) چې زیاتره د مخکړ یا تړښتي او بیلښتي توک ترمنځ راځي لکه : کښې نه ناست . پانه ځید . وانخیست . رانغی . مه خوره ......

کړاو ( تمرين ) :

| را | پا خ | یــــــد | ـ زورکی | ؟ |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۲ | ٦ـ۷ـ۸ـ۱۲ | ٤ | ۵ـ۹ـ ۱۱ |
| | | ۲ | | |

یادونه : نوزي ( ۱۰ ) په یوه بله بیلگه (راپاڅیدله) کی مومو چی له ۹ـ۱۰ او ۱۱ سره گډ ون لري ٠ همدارنگه دنفی توك ( ۱۳ ) په (رانه پاڅیدله) کی راتلاي شی ٠

اوړونــــــه (گردانــونـــــه)

لومړي ـ تیرمهـال : چی له دویمی یا تیرمهال ریښی څخه دنو موړو دیالی گونو توکونو او اړخونو په پام کی نیولو سره جوړ یت او اوړ ون مومی ٠

الف ـ له لیزند خوړ ـ دویمی ولی څخه ٠

۱ـ خبـــري ٠

۱ : بشپړ تیرمهال ( مطلقه ماضی )

چاروال

| گنه / وگړي | یوگــــړي | ډیرگــــړي |
|---|---|---|
| ۱ | ما وخوړ ـ وخوړه<br>وخوړل ـ وخــوړي | موږ وخــوړ ـ وخوړه<br>وخوړل ـ وخوړي |
| ۲ | تا وخوړ ـ وخــوړه<br>وخوړل ـ وخوړي | تاسی وخوړ ـ وخوړه<br>وخوړل ـ وخوړي |
| ۳ | ده ـ دې وخوړ ـ وخوړه<br>وخوړل ـ وخـــــوړي | دوی وخوړ ـ وخـــــوړه<br>وخوړل ـ وخــــوړي |

بیچار

| گڼه / وګړي | یوګړي | ډیرګړي |
| --- | --- | --- |
| ۱ | زه وخوړل شوم | موږ وخوړل شو |
| ۲ | ته وخوړل شوې | تاسی وخوړل شوئ ـ سواست |
| ۳ | دي وخوړل شو<br>دا وخوړل شوه | دوي وخوړل شول<br>دوي وخوړل شوې |

مخوال

| گڼه / وګړي | یوګړي | ډیرګړي |
| --- | --- | --- |
| ۱ | ما ځان وخوړ | موږ ځان وخوړ ـ ځانونه وخوړل |
| ۲ | تا ځان وخوړ | تاسې ځان وخوړ ـ رر رر |
| ۳ | ده ـ دې ځان وخوړ | دوي ځان وخوړ ـ رر ر |

یادښت : لکه څنګه چې موږ پا م وليدل په تيرمهال کې چارواک دبيچارکړ غوندې دکړي (مفعول) تابع دي نه دکړند لکه ماختکې وخوړ ـ ما ختکې وخوړل ـ ما هندوانه وخوړه ـ ما هندوانې وخوړې .... داچې څینې بهرنی پښتوپوهان دپښتو لیزندتیرمهال‌کړ (متعدي ماضی فعل) تل بيچار (پاسيف) بولی . دډوکتور تزي په وينا يوه بې سرويوله خبره ده ځکه چاروال ليزنديې نه بيچار هغه سره توپيرلري او هغه داچې دکړند پخپله دکړ ايښې (مسند اليه) دي . اوکړند پير هم ښيې نوبايد داسې وويل شي‌چې دپښتو دتيرمهال‌چاروال ليزندکړ (ماضی متعدي‌معلوم فعل) پایلی له کړي (مفعول) سره سمون لري .

۲ : نابشپړ تيرمهـال (هميشنی ماضی) : نابشپړ تيرمهال دبشپړوالی (مطلقيت) له( و ) پرته نورد بشپړ هغه‌غوندي جوړ ښت مومی بيچار ،ې دبيچارکړ نوم په لنډه ون (خوړل ) دمرستيالکړ (کيدل) په ملګرتيا جوړيزي اووګړيزي پايلی هم په دغه مرستيال کړپوري نښلی :

چاروال

| گڼه / وګړي | یوګــړي | ډیرګــړي |
|---|---|---|
| ١ | ماخوړ ـ خوړه ـ خوړل ـ خوړي | موږ خوړ ـ خوړه ـ خوړل ـ خوړي |
| ٢ | تاخوړ ـ خوړه ـ خوړل ـ خوړي | تاسي رر رر رر رر |
| ٣ | ده ـ دي رر رر | دوي رر رر رر رر |

بیچار

| گڼه / وګړي | یوګــړي | ډیرګــړي |
|---|---|---|
| ١ | زه خوړل کیدم | موږ خوړل کیــــدو |
| ٢ | ته خوړل کیدي | تاسي خوړل کیدئ ـ کیداست |
| ٣ | دي خوړل کیــده<br>دا خوړل کیــــده | دوي خوړل کیده ـ کیــــدل<br>دوي خوړ کیدې ـ کیدلـــــــي |

منحوال : ماخان خوړ ـ موږ ځان خوړ ........

٣ : روز دنی (اعتیادي) تیرمهال : داهغه رازکړ دي چې دهمیشه والی ترڅنگه د روز دتیا (اعتیادي) جاج (مفهوم) هم را اخلي په دې توگه داراز کړ ته روز دنی همیشنی کړ هم وبلاي شو . له هس عادي همیشنی کړ سره ین توپیر داچي ترکړ دمخه پري د (به) وییکی هم زیاتیږي .

چاروال

| یوګــړي | ډیرګړي |
|---|---|
| مابه خوړ ـ خوړه ـ خوړل ـ خوړي | موږبه خوړ ـ خوړه ـ خوړل ـ خوړي |
| تابه رر رر رر رر | تاسوبه رر رر رر رر |
| ده ـ دې به رر رر رر | دوي به رر رر رر رر |

| | | یوګـــړي | ډیرګـــړي |
|---|---|---|---|
| بیچار | ۱ | زه به خوړل کیدم | موږ به خوړل کیدو |
| | ۲ | ته به خوړل کیدې | تاسی به خوړل کیدئ ـ کیداست |
| | ۳ | دی به خوړل کیده | دوي به خوړل کیده ـ کیدل |
| | | دا به خوړل کیده | دوي به خوړل کیدې ـ کیدلی |

منځوال لکه دابه ځان خوړ ......

٤ : لنډ تیرمهال (قریبه ماضي) : د دي مهال کړ دچار او پیښنګ له مخی کله داسی وي چی په تیرمهال کی یو ځیز بشپړ شوي وي او یاداچی تر اوسمهال یی هم څه اوږدوالی موندلی وي • رغیدنګی یی داډول دي چی له بیچارکړ نوم (مفعولی صفت) ((خوړلی)) سره مرستیالکړ (ول) په اوسمهال کی اوړون مومی • په بیچارکی یی پردي سربیره دویم مرستیالکړ (کیدل) یا (شول) ورسره هم اوړون کوي او د دې لپاره چی وګړیزي پایلی په دواړو مرستیالکړونو پوري تښتلی نو دا ستنیالپاره د بیچارکړ نوم پایلی ته اړ تیا نه پاتیږي همداراز په لرتیرمهال بیچارکړ کی هم د بیچارکړ نوم (خوړلی) یا یی غورځی اود (خوړل) په بڼه پاتیږي چی ځینی دودیز پښـتو پوهان (ګرامرپښنیان) یی له (مصدر) سره ګډوي او اشتباه کوي •

| | یوګـــړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | ما خوړلی دي ـ خوړلی ده ـ خوړلی دي ـ خوړلی دی • | موږ خوړلی دي ـ خوړلی ده ـ خوړلی دي • خوړلی دی • |
| ۲ | تا ,, ,, ,, ,, | تاسی ,, ,, ,, ,, ,, ,, ,, |
| ۳ـ | ده ـ دې ,, ,, ,, ,, | دوي ,, ,, ,, ,, ,, ,, ,, |

| | یو گــــــــړي | ډیر گـــــړي |
|---|---|---|
| ۱ | زه خوړل شوي – شو ې یم | موږ خوړل شوي – شوې یو |
| ۲ | ته خوړل شوي – شوې یې | تاسې خوړل شوي – شوې یې، یاست |
| ۳ | دی خوړل شوي دي<br>دا خوړل شوې ده | دوي خوړل شوي دي<br>دوي خوړل شوې دي |

بېچار

منحوال لکه ماځان خوړلی دي ........

٥ : لرتېرمهال (بعید ماضی) : د لرتېرمهال کړ ته هغه وخت اړتیا پرېوځي چې وروسته تري بشپړ تیرمهال یا لنډ تیرمهال کړ پیښ شوي وي . یا په بله وینا ، لرتیرمهال کړ یوله دغو نورو ډولو تر کارېدنې (استعمال) وروسته کارول کیږي لکه چې وایي :

ته پرلسو بجو راغلی (بشپړ) اوزه پرنهو بجو راغلی وم (لــر)

یا : ته پرلسو بجو راغلی یې (لنډ)

د لر تیرمهال او ړون نورد لنډ هغه غوندي دي خو د لته ورسره مرستیالکړ (ول) هم په لــره زمانه کې اوړون مومي :

| | یو گـــــړي | ډیر گـــــړي |
|---|---|---|
| ۱ | ماخوړلی و – خوړلی وه – خوړلی وو – خوړلی وې | موږ خوړلی و – خوړلی وه – خوړلی وو خوړلی وې |
| ۲ | تاړر رر رز رر | تاسې رر رر رر رر رر |
| ۳ | ده – دې رر رر رر رر | دوي رر رر رر رر رر |

چاروال

| | یو گـــــړي | ډیر گـــــړي |
|---|---|---|
| ۱ | زه خوړل شوي – شوې وم | موږ خوړل شوي – شو ې وو |
| ۲ | ته رر رر رر | تاسې رر رر رر وي – واست |
| ۳ | دی خوړل شوي و<br>دا خوړل شوې وه | دوي خوړل شوي وو<br>دوي خوړل شوې وې |

منځوال لکه ماڅان خوړلی و ...........

٦ : گومانی تیرمهال (احتمالی یا شکیه ماضی) : هغه کړ ته وایي چې کیدنگ یې گومانس او اړنگمن (مشکوک) وي ٠ رغیدنه یې د اس کیږي چې لمه بیچارکړ نوم (خوړلی) یا (خوړل) سره (به) ملتیا مومی او په چاروال کی یواځی د (ول) مرستیالکړیواځینی بڼه (وي) او په بیچارکی ورسره (شول) او د (ول) ټولی اوسمهال بڼې اوړون کوي ٠ او د (وي) په بڼه یواځي په دریم وگړي کی (گوند ي) یا (بنایی) غوندي گوماني ویپکی هم ورسره ټولیز ډول مل کیدای شی ٠

| | | يوگـــړي | ډيرگـــړي |
|---|---|---|---|
| چاروال | ١ | ما به خوړلی — خوړلی — خوړلی — خوړلی وي | موږ به خوړلی — خوړلی — خوړلی وي |
| | ٢ | تا به رر رر رر | تاسی به رر رر رر رر |
| | ٣ | ده — دې به رر رر رر | دوي به رر رر رر رر |

| | | يوگـــړي | ډيرگـــړي |
|---|---|---|---|
| بیچار | ١ | زه به خوړل شوي — شوې یم | موږ به خوړل شوي — شوې یو |
| | ٢ | ته به رر رر رر یې | تاسی به رر رر رر یئ — یاست |
| | ٣ | دی به خوړل شوی وي | دوي به خوړل شوي وي |
| | | دا به خوړل شوې وي | دوي به خوړل شوې وي |

منځوال لکه : ما به ځان خوړلی وي .....

۷ : ارماني تيرمهال (تمناي ماضی) : چی دیوه ارمان څرګندونه کوي او د دود له مخی په بشپړ تیرمهال ، نابشپړ تیرمهال ، نرتیرمهال ارګوماني تیرمهال پوریاړه لري :

۱ـ ارماني بشپړ تیرمهال (تمنايی مطلقه ماضی) چی درغیدنی له مخی په بشپړ تیرمهال اړه‌جاج او مرخی (مفهوم او مطلب) له‌مخی په اوسمهال پوري اړه لري جوړيدنه‌ یی دبشپړ تیا (مطلقیت) و ـ په‌مختاري کولو او دچاروال لپاره دبیچارکړ نوم (مفعولی صفت) په اوز دولو او دبیچار لپاره دپای په‌غوړ څولو او دمرستیالکړ (شول) دبیچارکړ نوم په اوز دولو ترسره کیږي ، دغه رازیی دزیاتی څرګندتیا لپاره تر اینس (مسندالیه) دمخه یا وروسته د (کاشکی) وییکی دیوه‌نحوي توك په توګه هم ملګري کیداي شی .

| | | یوګړي | ډیرګـــــړي |
|---|---|---|---|
| چاروال | ۱ | کاشکی ما وخوړاي | کاشکی موږ وخوړاي |
| | ۲ | کاشکی تا وخوړاي | کاشکی تاسی وخوړاي |
| | ۳ | کاشکی ده ـــ دې وخوړاي | کاشکی دوي وخوړاي |

| | | یوګـــــړي | ډیرګـــــړي |
|---|---|---|---|
| بیچار | ۱ | کاشکی زه وخوړل شواي | کاشکی موږ وخوړل شواي |
| | ۲ | کاشکی ته وخوړل شواي | کاشکی تاسی وخوړل شواي |
| | ۳ | کاشکی دي ـــ دا وخوړل شواي | کاشی دوي وخوړل شواي |

منځوال لکه : کاشکی ما ځان وخوړلای ........

۲ـ ارماني نابشپړ تیرمهال : چاروال یی بی دبشپړ تیا (مطلقیت) له‌و ـ څخه دبشپړ هغه‌غوندي جوړیږي او بیچاریی بی له دغه (و) ارمرستیال کړ په‌بدلولو (شول پرکیدل) دبیچار بشپړ هغه‌غوندي راځي .

| | | یوگـــــړي | ۲ یرگـــــړي |
|---|---|---|---|
| چاروال | ۱ | کاشکی ما خوړ اي | کاشکی موز خوړ ا ي |
| | ۲ | کاشکی تا خوړ اي | کاشکی تاسې خوړ اي |
| | ۳ | کاشکی ده ـ دي خوړ اي | کاشکی دوي خوړ اي |

| | | یوگـــــړي | ۲یرگـــــړي |
|---|---|---|---|
| بیچار | ۱ | کاشکی زه خوړ ل کیدا ي | کاشکی موز خوړ ل کیدا ي |
| | ۲ | کاشکی ته خوړ ل کید اي | کاشکی تاس خو ړ ل کیدا ي |
| | ۳ | کاشکی دي ـ دا خوړ ل کیدا اي | کاشکی دوي خوړ ل کیدا ي |

منځوال لکه : کاشکی ما ځان خوړ لاي ..........

۳ـ ارمانی لرتیرمهال ( تمنایی بعیده ماضی ) چاروال داسې جوړیزي چې په بیچارکړ نوم ( مفعولی صفت ) پسې دمرستیالکړ ( ول ) بیچارکړ نوم او زد ( واي ) راشي او بیچار یې دبیچارکی نوم په لنډو ولو او ( شول ) په زیاتو راځخ ته کیږي .

| | | یوگـــــړي | ۲ یرگـــــړي |
|---|---|---|---|
| چاروال | ۱ | کاشکی ماخوړلی ـ خوړلی ـ خوړلی ـ خوړلی ـ خوړلی واي | کاشکی موز خوړلی ـ خوړلی ـ خوړلی ـ خوړلی ـ خوړلی ـ خوړلی واي . |
| | ۲ | کاشکی تا ﺭﺭ ﺭﺭ ﺭﺭ | کاشکی تاس ﺭﺭ ﺭﺭ ﺭﺭ |
| | ۳ | کاشکی ده ـ دي ﺭﺭ ﺭﺭ ﺭﺭ | کاشکی دوي ﺭﺭ ﺭﺭ ﺭﺭ |

٢ـ اړوتی نابشپړ تیرمهال (شرطیه استمراري ماضی) لکه: که ما خوړ ـ که موږ خوړ یا که ما خوړلای ـ که موږ خوړلای ....

٣ـ اړوتی لنډ تیرمهال (شرطیه قریبه ماضی) لکه: که ما خوړلی دي ـ که موږ خوړلی دي یا ـ که ما خوړلی وي که موږ خوړلی وي ....

٤ـ اړوتی لرې تیرمهال (شرطیه بعیده ماضی) لکه که ما خوړلی و ـ که موږ خوړلی و یا ـ که ما خوړلی وي ـ که موږ خوړلی وي .....

په دې توګه هر اړوتی تیرمهال په څرمه (ضمنی) ډول ګومانی ـ ارمانی ـ هیښنی ...... هم کیدای شی.

٩: توانی تیرمهال (امکانی یا اقتداري ماضی): چی دیوه کړ کیدون (امکان) یانه کیدون تري څرګندیږي. په پښتو کی په ساده جولسیز ډول یواځی بشپړ تیرمهال او نابشپړ تیرمهال توانی کیدای شی او همدغه دوه ډوله تیرمهالونه په څرمه توګه نور تیرمهالونه هم را اخلـــــــــس. رغیدنګ یی دبیچارکړ نوم دپای غبرګغږ په اوږدولو (خوړلای یا خوړای) او ورسره دمرستیالکړ (شول یا کیدل یادواړو) په ګردانولو تر سره کیږي.

١ـ توانی بشپړ تیرمهال. لکه: ما وخوړلای شو ـ وخوړای شو ـ تاوخوړلای شو ـ وخوړای شو ......

٢ـ توانی نابشپړ تیرمهال. لکه: ما خوړلای شو ـ خوړای شو ـ تا خوړلای شو ـ خوړای شو ......

اعتیادي: لکه: ما به خوړلای شو ـ خوړای شو ـ تا به خوړلای شو ـ خوړای شو.

١٠: ټینګاري تیرمهال (تاکیدي ماضی): چی دکړ د ترسره کولو یانه ترسره کولو ټینګار (تاکید) څرګندوي او یواځی په بشپړ اونا بشپړ تیرمهال کی راتلای شی:

١ـ ټینګاري بشپړ تیرمهال چی له بیچارکړ نوم سره د (به). (و) یا (وای) په ملګري کولو جوړیږي لکه: ما به خوړلی وی، ما به خوړلی وای او یا خوړلی به می و. خوړلی به می وای.

٢ـ تېنګاري نابشپړ تېرمهال چې له اعتيادي سره په اهنګ کې توپير لري لکه :
مابه خوړ يا مابه خوړ لای‌یاخوړ اي ٠ کله کله بويه يا ( بايد ) هم په سرکي راتلای شي او دپای
ليکښه يې ندائيه راځي ٠

ـ هيښنې تېرمهال ( تعجبي ماضي ) ٠ چې په هيښتيا ( تعجب يا تحير ) سره
څرګنديږي ٠ دا‌راز‌کړ يواځي په اهنګ کې له خبري‌هغه سره توپيريږي ليکښنه يې يوه بلښښه
(ندائيه) ده ٠

بېلګه لکه : ماوخوړ ! تاوخوړ ! ٠٠٠٠٠٠٠٠

١١ : پوښتنې تېرمهال ( استفهامي ماضي ) چې ديوه کړ ن پېښېدنه يا نه پېښېدنه پوښتنه
داهم له خبري‌کړ سره يواځې په اهنګ کې توپير مومي په دي توګه چې دخبري کړ اهنګ
له‌عادي‌څخه يا اهنګ سره اوأرپيل مومي او تيټ پاي ته رسي اوپوښتنې بيا له يوه زيات پياوړي
څخه يا په بله وينا له يوه هوار اهنګ سره پيل مومي او په پاي کې لوړيږي ٠ پوښتنې کړ په
بشپړ تېرمهال ٠ نابشپړ تېرمهال ٠ لنډ تېرمهال لرتېرمهال اوتوانې تېرمهال کې راتلای‌شي
ليکښنه يې پای‌ته‌يوه‌پوښتښنه ( ؟ ) ده ٠

١ـ پوښتنې بشپړ تېرمهال لکه : ما وخوړ ـ تاوخوړ ٠٠٠٠٠٠٠٠

٢ـ پوښتنې نابشپړ تېرمهال لکه : ما خوړ ـ تاخوړ ٠٠٠٠٠٠٠

٣ـ پوښتنې لنډ تېرمهال لکه : ماخوړلی دي ـ تاخوړلی دي ٠٠٠٠٠

٤ـ پوښتنې لرتېرمهال لکه : ما خوړلی و ـ تاخوړلی و ٠٠٠٠٠٠

٥ـ پوښتنې توانې تېرمهال لکه : ما وخوړ لای شو ـ تا وخوړ لای شو ٠٠٠٠٠

لکه : ماوخوړ لای شو ـ تا وخوړ لای شو ٠٠٠٠٠

يا : ما خوړ لای شو ـ تاخوړ لای شو ٠٠٠٠٠

ب ـ نالیزندکړ ( راتلل ) له بشپړ اندو ( سوپلتیفو ) دویمو ولیــو راتل ـ ( رات ) ٠ راغل ـ ( راغ ) څخه راغل ـ دبشپړ ( مطلق ) او راتل ـ دنابشپړ ( غیرمطلق ) کړ ولی هم جوړیزي بلل کیـــزي :

ا : بشپړ تیرمهال ( مطلقه ماضی ) :

اـ خبــري : چی له راغل ـ یا راغ ـ ریښی څخه جوړ ښت او اوړ و ن مومی ٠

| | یوګړ ي ( مفرد ) | ډیرګړ ي ( جمع ) |
|---|---|---|
| ۱ | زه راغلم | موږ راغلو |
| ۲ | ته راغلی | تاسی راغلئ : ـ راغلاست |
| ۳ | دي راغی ( راغلـئ ) | دوي راغلــل |
| | دا راغلـــه | راغلی ( راغلـلـــی ) |

۲ـ لنډ تیرمهال چــی دلیزندکړ غوندي دبیچارکړ نوم له اندول ( راغلی ) څخه دمرستیالکړ ( ي ـ ) او ( د ـ ) په ملګرتیا جوړیزي او ګردانیزي ٠

| یوګـــړي | ډیرګـــړي |
|---|---|
| زه راغلی ـ راغلی یم | موږ راغلی ـ راغلی یـــو |
| ته راغلی راغلی یـی | تاسی راغلی راغلی یی ـ یاست |
| دي راغلی دي | دوي راغلی دي |
| دا راغلی ده | دوي راغلی دي |

٣- لرتیرمهال ( بعید ماضی ) چې له لنډ تیرمهال سره په مرستیالکړ کې توپیر موږ هغه د اچي دلته د ( ول ) ولی ( و - ) په کارلویږي

| یوګړی | ډیرګړي |
|---|---|
| زه راغلی - راغلی وم | موږ راغلی - راغلی وو |
| ته راغلی - راغلی وې | تاسې راغلی - راغلي وئ - واست |
| دی راغلی وو | دوی راغلي وو |
| دا راغلی - راغلی وه | دوی راغلی - راغلی وې |

٤- نابشپړ تیرمهال ( همیشنی یا استمراري ماضی ) چې د راغلی - له بشپړاندې ملګري ولی ( راتل - ) یا ( رات ) څخه جوړ بنت او اوړون دوی په دې توګه چې وګړیزي پایلی په هغدغی ولی پوري نیده نښلی :

| یوګړی | ډیرګړي |
|---|---|
| زه راتلم | موږ راتلو |
| ته راتلې | تاسې راتلئ - راتلاست |
| دی راته - راتلو - راتلی | دوي راتلل |
| دا راتله | دوي راتلې - راتللې |

٥- روزدنی تیرمهال ( اعتيادي ماضی ) چې له نابشپړ تیرمهال څخه د ( به ) وییکی زیات لوي لکه : زه به راتلم - ته به راتلې ........

٦- ارماني تیرمهال ( تمنايی ماضی ) چې په بشپړ - نابشپړ او لر تیرمهال پوري اړه لري او دمرخی او جاج ( مفهوم ) له مخی زیاتره په اوسمهال پوري اړه نیسي . بشپړ یې له نابشپړ سره د بشپړ تیا ( مطلقیت ) و - توپیریږي بشپړ یې لکه ( راغلی لای ) یا ( ولاړ ای )

او نابشپړ یې لکه ( راتللای ) . لنډی دا رکړ نوم دغبرګونږ . داوزدولو پرځای د مرستیالکړ ( ول )
هغه پراوزده غبرګونږ اړري . دېره ښرګندتیا لپاره د دروواړو ګولو په سرکې د ( کاشکې )
وییکو، دیوه نحوي توك په توګه هم راوړل کیدای شي .

(۱) بشپړ ارمانې :

| | یوګـــړي | ډیرګـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې زه راغللای — راغلای | کاشکې موږ راغللای — راغلای |
| ۲ | کاشکې ته رر رر | کاشکې تاسې رر رر |
| ۳ | کاشکې دی — دا رر رر | کاشکې دوي رر رر |

( ۲ ) نابشپړ ارمانې :

| | یوګـــړي | ډیرګـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې زه راتللای — راتلای | کاشکې موږ راتللای — راتلای |
| ۲ | کاشکې ته رر رر | کاشکې تاسې رر رر |
| ۳ | کاشکې دی — دا رر رر | کاشکې دوي رر رر |

(۳) لرارمانې :

| | یوګـــړي | ډیرګـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې زه راغلی — راغلې وای | کاشکې موږ راغلي — راغلي وای |
| ۲ | کاشکې ته رر رر رر | کاشکې تاسې رر رر |
| ۳ | کاشکې دی — دا رر رر | دوي رر رر رر |

۷ـ توانی تیرمهال (امکانی ماضی) چې په (تلل) غونډی‌نالیزند. ٠ کړ کې په ساده ډول پراخی نابشپړ تیرمهال را اخلي او هغه هم په دې ډول جوړیږي چې د بیچارکړ نوم اند ډول (تللی) پاې غبرګعبزا و ز دیبزي او مرستیالکړ (شول) ورسره اوړ ون‌موس ٠

| | یوګـــړي | ډیرګـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | زه راتللاي ـ راتلاي‌شوم | موږ راتللاي ـ راتلاي شو |
| ۲ | ته « « شوې | تاسې « « شوئ ـ شوا ست |
| ۳ | دی « « شو<br>دا « « شوه | دوي « « شول<br>دوي « « شولې ـ شوې |

۸ـ ګومانی تیرمهال (شکیه یا احتمالي ماضی) چې بشپړ ـ نابشپړ ـ لانډ او لـــر تیرمهال یې په دې تو اندي ډولي جوړیږي ٠

(۱) بشپړ ګومانی چې د (لکه چې) په ماتیا د خبري هغه غونډی جوړیږي موس لکـــه چې

| یوګـــړي | ډیرګـــړي |
|---|---|
| لکه چې زه راغلم ! | لکه چې موږ راغلو ! |
| لکه چې ته راغلی ! | لکه چې تاسې راغلی ـ راغلاست ! |
| لکه چې دی راغلی ! | لکه چې دوي راغلل ! |
| لکه چې دا راغله ! | لکه چې دوي راغالی ـ راغلی ! |

(۲) نابشپړ ګومانی چې له خبري نابشپړ تیرمهال څخه د (ګوند) نبه (نبایی) یا (لکه چې) په ماتیا جوړیږي او د روزدنې لپاره یې (به) هم ملګري کیږي ٠

| یوګـــړي | ډیرګـــړي |
| --- | --- |
| ګوندي ـ ښايي يالکه چې زه راتلم | ګوندي ـ ښايي يالکه چې موږ راتلو |
| رر رر رر ته راتلې | رر رر رر تاسو راتلئ ـ راتلاست |
| رر رر رر دي راتلو ـ راته | رر رر رر دوي راتلل ـ راتله |
| رر رر رر دا راتله ـ راتله | رر رر رر راتللې ـ راتلې |

روزدنې لکه : زه ګوندي ـ ښايي يالکه چې زه به راتلم ـ ته به راتلې ۰۰۰۰۰۰۰

(۳) لنډه ګومانـــې د بشپړ ګومانې غونډي په (لکه چې) يا (به) له خبري هغه سره توپيرېـــــزي ۰

| یوګـړي | ډیرګړي |
| --- | --- |
| لکه چې زه راغلې ـ راغلې يم | لکه چې موږ راغلي ـ راغلي يو |
| رر رر ته رر رر يې | رر رر تاسو رر رر يئ ـ ياست |
| رر رر دي ـ دا رر رر وي | رر رر دوي رر رر وي |

يا ـ زه به راغلې يم ۰۰۰۰۰۰

( ٤ ) لـرګومانې چې له خبري هغه سره د (ګوندي) ـ (ښايي) (لکه چې) يا (به) په سرباري کولو توپيرېزي لکه ګوندي زه راغلې وم ـ زه به راغلې وم ۰

۹ـ ټينګاري تيرمهال (تاکيدي ماضي) ۰ چې بشپړ ـ نابشپړ اولر راتلاي شي او دموخې اوجاج له پلوه زياتره په اوسمهال پوري اړه لري ۰ او د پوره څرګندتيا لپاره يې په سرکې (بويه) يا (بايد) هم ملګري کيږي ۰

(۱) بشپړ ټينګاري د بويا بايد په مختاړي کولو او د (اي) په روستاړي کولو له (راغلل ـ) يا (راغل ـ) څخه جوړيږي لکه زه به راغللاي ـ راغلاي يا زه بايد راغللاي ـ راغـــــلاي ۰

(٢) نابشپړ تېنگاري چې د به یا باید په مختاړي کولو او (اي) په روستاړي کولوله (راتلل ـ ) یا (راتل ) څخه جوړیزي لکه :

زه به راتللاي ـ راتلاي یا زه باید راتللاي ـ راتلاي ۰۰۰۰۰۰ او یا راتلم به ـ راتلی به او داسی نور ۰

(٣) لـر تېنگاري چې له خبري تیرمهال څخه د (به) په سرباري کولو توییریزي لکه زه به راغلی وم ـ ته به راغلی وي ۰۰۰۰۰۰۰ که د (به ) ځای (باید یا (بویه) ونیسی نوبیا د (ول )کړ نوم پاي غبرگغز لکه ارماني هغه غوندې ورسره اوز دیزي لکه زه باید راغلی واي ـ ته بویه راغلی واي چې البته په درو واړو وگړو کې یې بیا نرینه او ښځینه سره توپیر یداي شي ۰ دپاي لیکښنبه یې بلننښـه ( ! ) راځي ۰

۱۰ ــ پوښتنی تیرمهال (استفهامی ماضی) په دي مانا چې که په هر ډول تیرمهال کې پوښتنه راشي ۰ نو پوښتنی تیرمهال بلل کیږي ۰ بشپړ لکه زه راغلم نابشپړ لکه زه راتلم لنډ لکه زه راغلی یم لر لکه زه راغلی وم او داسی پسی نور ۰

۱۱ ــ هیښـنی تیرمهال (تعجبی ماضی) چې هیښتیا تري څرگندیزي اوله پوښتنی سره یواځی په اهنگ کې توپیر مومي لکه زه راغلم ! ته راغلی ! اوهم داسی په نورو تیرمهالونو کې ۰

۱۲ ــ اړوتی تیرمهال (شرطیه ماضی) چې په تیرمهال کې د کوم کړ پیښیدنـه یا نه پیښیدنه په یوه اړ (شرط )پوري تړلی وي داکړ نور ترپایه پوري د خبري هغه غوندې رغیدنگ لري خو په سرکې یې یو نحوي توك اړ وییکی (شرطیه ادات) ـ که ـ راوړل کیږي لکه که زه راغلم ۰ که زه راتللم ۰۰۰۰۰۰۰

## دویم ــ داوسمهال کړ اوړون ( گــردان ) :

اوسمهال کړ دامانا چی کړ هماغه مهال یا یوځه وروسته پیښیږي چی یادونه یی کیږي ٠ چاروال یی له لومړي ولی ( ریښی ) څخه جوړیږي اوبیچار یی له تیرمهال یا په بله وینا له دویمی ولی څخه ٠ چی په دواړو بڼو کی وریوري تاکلی اوړونی ( تصریفی ) تاړي ( وندونه ) نښلول کیږي ٠ دغه تاړي دایښی ( مسندالیه ) اود هغه د گڼی څرگندونه کوي نه د توږي او مهال ٠ دامانا چی په ناتیرمهال کی توږي نه توپیریږي او مهال خوزیاتره پخپلی کړ ولی سره څرگندیدنه مومی ٠

الف ــ له لیږند خور ــ څخــــه :

١ : بشپړ اوسمهال ٠

١ــ خبري : چاروال ٠ چی له لومړۍ ریښی څخه زیاتره د بشپړتیا یی ( مطلقیت ) ( و ــ ) په مختاړي کولو او داړوندو نښلونو په زیاتو لو لاسته راځی :

| یوگړي ( مفرد ) | ډیرگړي ( جمع ) |
|---|---|
| وخورم | وخورو |
| وخوري | وخوري ٠ |
| وخوري | وخوري |

بیچار ٠ چی له دویمی ولی څخه د لاسته راغلی بیچار کړ نوم په لنډون اوله هغه سره د مرستیالکړ ( شول ) په اوړون جوړښت مومی :

| یوگــړي | ډیرگړي |
|---|---|
| وخوړل شم | وخوړل شو |
| وخوړل شی | وخوړل شی ٠ |
| وخوړل شی | وخوړل شی |

منځوال لكه : ځان وخورم ......

٣ـ آرزوئي بشپړ اوسمهال ( شرطي حال ) چې له خبري بشپړ او سمهال سره توپير يې يوازې دا دئ چې يا شرطيه ادات (كه) په سرباري كولو څرګنديږي ۰

چاروال لكه : كه وخورم ـ كه وخوري ....

بيچار لكه : كه وخوړل شم ـ كه وخوړل شي ....

منځوال لكه : كه ځان وخورم ـ كه ځان وخوري .....

٤ـ ارماني بشپړ او سمهال چې د (كاشكې) په ځكي كولو سره د خبري هغه غونډي رغيدنـــګ ميږي :

چاروال لكه : كاشكې وخورم ـ كاشكې وخوري .....

بيچار لكه : كاشكې وخوړل شم ـ كاشكې وخوړل شي ....

منځوال لكه : كاشكې ځان وخورم ـ كاشكې ځان وخوري

٥ـ پوښتني بشپړ او سمهال چې په رغيدنګ كې له خبري څخه يوازې د خج په پياوړتيا او د اهنګ په لوړتيا كې توپير لري ۰ ليكنبــه يې پوښتنينه ده :

چاروال لكه : وخورم وخوري

بيچار لكه : وخوړل شم وخوړل شي ۰

منځوال لكه : ځان وخورم ځان وخوري

٦ـ هيښنيز بشپړ او سمهال له پوښتني هغه څخه يوازې په اهنګ او د غزيدونكې په اكړ (وضع) بيلتون مومي لاى شي او ليكنښه يې د پوښتنې پرځاي بلنښه راځي :

چاروال لكه : وخورم ! وخوري !

بيچار لكه : وخوړل شم ! وخوړل شي !

٦ـ توانی بشپړ اوسمهال ؛ چې له دویمې ولې څخه دلاسته راغلې بیچارکړ نوم دپای غبرګفبز په اوږدو لواو ورسره د (شول) په اوړونو لو (ګردانولو) سره منځ ته راځي دچولې له مخې له بشپړ تیرمهال سره کوم توپیر نلري ، په زړه پوري دا چې یې چاروال اوبیچار سره یوا ځې دغبږیدونکی دا کسرا (وضعیت) ، چا پیریال او د ریخ (موقعیت) اونومخرو له مخې توپیریداي شي لکه : زه غم وخوړلای شم ـ ماغم وخوړلاي شي باغم ما وخوړلاي شي ...

| ګڼه / وګړي | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ١ | وخوړلاي شم | وخوړلاي شو |
| ٢ | وخوړلاي شې | وخوړلاي شئ |
| ٣ | وخوړلاي شي | وخوړلاي شي |

٧ـ امري بشپړ اوسمهال چې یوا ځې د دویم وګړي لپاره راځي چاروال یې له لومړي ولې څخه ساده ډول او بیچار یې له دویمې ولې څخه دلاسته راغلې بیچارکړ نوم په لنډو ن او د مرستیالکړ (شول) په اوړون سره تر سره کیږي .

چاروال لکه : وخوره ! وخورئ !

بیچار لکه : وخوړل شه ! وخوړل شئ !

٨ـ ټینګاري یا تاکیدي بشپړ اوسمهال چې له خبري‌هغه سره یې توپیر یوا ځې د ټینګارو یکی یا تاکیدیادات (دې) په ورزیاتولو ترسره کیږي .

چاروال له‌نومخرو سره لکه : زه دې وخورم ! ته دې وخورې ....

بې نومخرو لکه : ودې خورم ! ودې خورې ....

بیچار : له نومخرو سره لکه : زه دې وخوړل شم ! ته دې وخوړل شې !

بې نومخرو لکه : ودې خوړل شم ! ودې خوړل شې !

۹ـ غوښتنی بشپړ اوسمهال چې دعایا ښیرا څرګندوي او یواځې په ناتیرمهال کی راتلای شی ۰ د ټینګاري هغه او کله کله د امري هغه غوندي جوړیږي خو پوره څرګند تیا یې په یوه غونډ له (جمله) کی له نورو توکونو سره کیدای شی لکه :

سردې وخورم یا سرمې دي وخورم ـ سرد ي وخوره یا په دغو متلو کی : نه اشه ښه ده نه ګله ـ دوي دي وخوري یو تربله (میدان) ۰

نه یوه ښه ده نه بله ـ دوي دي وخوري یوتربله (د هلمند ناوه)

په پښتو کی زیاتره ارکړونه په ساده او یو ستوي توګه دغوښتنی لپاره راتلای نشی اومرستیالکړونه او توکونه ورسره ملګري کیږي ۰

ساده لکه : ومره ! ژوه ! (زنده باد) ۰

ترښتی (ترکیبی) لکه : ستړي مه شی ! خوارمه شی ! هرکله راشی ! خیریوسی !

یا له (خدای) سره : خدای دې خوار مکړه ! خدای دي وبښه ـ خدای دي ښه درسره وکړي ۰۰۰

۱۰ـ ګومانی بشپړ او سمهال چې دارنګ وییکو (شکیه اداتو) او غونډ له یيزو توکونو په مختاړلي کولو له خبري هغه څخه جوړیږي ۰

چاروال لکه : ښایی چې وخورم ـ ګوندې وخورم ـ لکه چې وخورم ـ کیږي چې وخورم

بیچار لکه : ښایی چې وخوړل شم ـ ګوندي وخوړل شم ـ لکه چې وخوړل شم ـ

کیږي چې وخوړل شم ! ۰

۲ : نابشپړ اوسمهال (غیرمطلق یا استمراري چال)

۱ـ خبـــري :

چاروال ۰ چې بی له کوم مختاړي له لومړي کړولی سره دوګړیزو پایلو (خاتمو) په ملتیا جوړیږي لکه :

| گڼه / وگړي | یوگړي ( مفرد ) | ډیرگړي ( جمع ) |
|---|---|---|
| ۱ | خورم | خورو |
| ۲ | خورې | خوري |
| ۳ | خوري | خوري |

بیچار ۰ چې له لنډه کړ شوي بیچارکړ نوم (خوړل) سره مرستیالکړ (کیدل) په اوسمهال کې اوړون موږی لکه :

| گڼه / وگړي | یوگړي | ډیرگړي |
|---|---|---|
| ۱ | خوړل کیږم | خوړل کیږو |
| ۲ | خوړل کیږې | خوړل کیږئ |
| ۳ | خوړل کیږي | خوړل کیږي |

منځوال لکه : ځان خورم ......

۲ـ اړوتی نابشپړ اوسمهال چې داړوییکی یاشرطیه ادات (که) په مختاړي کولو له خبري ه څخه جوړیږي .

چاروال لکه : که خورم ـ که خورې ......

بیچار لکه : که خوړل کیږم ـ که خوړل کیږي ......

منځوال لکه : که ځان خورم ـ که ځان خورې ......

۳ـ ارمانی نابشپړ اوسمهال چې دجولی له مخی له ارمانی نابشپړ تیرمهال سره کوم توپیر نلري لکه کاشکی ما خوړلی شوای ، په دې توگه یی له نورو ارمانی (تیرمهال یااوسمهال) ډولونو سره د چاروال او بیچار توپیر د دریځ او نومځرو له مخی کیدای شی ۰

۴ـ پوښتنی نابشپړ اوسمهال له بشپړ تیا یی یا مطلقه (و ـ) پرته نور د پوښتنی بشپړ اوسمهال غوندي رغیدنگ لري لکه خورم ۰

٥ــ هینبنی بیاله پوښتنې سره یواځې په اهنګ اوچاپیریال سره توپیرپیدا ای شي اوبه لیک کې په بلنښــه لکه : خورم !

٦ــ ګومانی نابشپړ اوسهال له بشپړ تیابـی ( و ــ ) پرته نورد بشپړ هغه غوندي رغیږي لکه ګوندي خورم یا ګوندي خپل سرخورم ......

٧ــ توانی نابشپړ اوسمهال دجولی لهمخې له توانی نابشپړ تیرمهال سره کوم توپیر نلري اوبراځې دجاج اوموخې ( مفهوم او مقصد ) له مخې تري توپیرپیداي شي اوهماغسې یې دچاروال اوبیچار بیلتون دنومځرو په اوښتون سره راځي لکه ما خوړلی شواي ــ زه خوړلی شواي ...

٨ــ امري نابشپړ اوسمهال چې کټ مټ دبشپړ هغه غوندي یواځې د دویم وګړي لپاره راځي لکه خوره ! خوري !

٩ــ ټینګاري یا تاکیدي نابشپړ اوسمهال چې د ( دي ) په ملتیاپه دي وروستــــه ټول جوړیدنګ مومي.

چاروال . له نومځرو سره لکه زه دي خورم ــ ته دي خوري .

بې نومځرو لکه : خوړل کیږم دي ــ خوړل کیږي دي ! (١)

١٠ــ غوښتنې نابشپړ اوسمهال چې ټیرلز دودلري او هغه هم په ځینو کړوار بیاپه یوه غونډ له ( جمله ) کې له نورو توکونو سره لکه :

خدای دي لره ــ خدای دي له هري بلا ساتــــه !

خدای دي مه بښه ــ خدای دي مه خواروه !

خدای دي مه کموه ! اودا سې نور .

( ١ ) بیچار ــ له نومځرو سره لکه زه دي خوړل کیږم ــ ته دي خوړل کیږي

بې نومځرو لکــــه خوړل کیږم دي ــ خوړل کیږي دي .

ب ــ له نالیزتند خ ــ ــ ولاړ ــ او تلل یا تل ــ ځخه :

۱ : بشپړ اوسمهال ، چې له دویمې ولې ( ولاړ ــ ) سره مرستیالکړ ( شول ) اوړون مومې ،

۱ــ خبري :

| ۲ یرګړي ( جمع ) | یوګړي ( مفرد ) | ګڼه / وګړي |
|---|---|---|
| ولاړ شــو | ولاړ شــم | ۱ |
| ولاړ شــئ | ولاړ شــې | ۲ |
| ولاړ شــو<br>ولاړي شــي | ولاړ شــو<br>ولاړه شــوه | ۳ |

۲ــ اړوتي بشپړ اوسمهال ، چې د اړوبیکې یا شرطیه ادات ( که ) په مختاړيکولو دخبري هغه غونډي رغیدنه مومې لکه : که ولاړ شم ــ که ولاړ شې ......

۳ــ ارماني بشپړ اوسمهال چې د ټولو وګړو لپاره له ( ولاړ ــ ) ځخه دجوړ شوي کړ نوم ( ولاړ لی ) په اوږدو لو جوړیږي او دپوره ځرګندتیالپاره یې د ( کاشکې ) وییکی هم په سرکې راځي او دجولې له مخې له ارماني بشپړ تیرمهال سره کوم توپیر نلري لکه : کاشکې زه ولاړ لای یا ولاړای ــ کاشکې ته ولاړ لای ــ ولاړای ....

٤ــ پوښتنې بشپړ اوسمهال چې له خبري هغه سره یوازې په اهنګ کې توپیرلري لکه : ولاړ شم ولاړ شې .

٥ــ هیښنې ، چې له خبري یا په بله وینا له پوښتنې هغه سره دغږیدونکي په یوه ځانګړي اکر ( وضعیت ) او اهنګ کې توپیرمومې لکه :

ولاړ شم ! ولاړ شې !

٦ــ تواني بشپړ اوسمهال چې له ( ولاړ ) سره د مرستیالکړ ( شول ) اوږ دغبرګغږيکړ نوم ( شولای یا شوای ) اوړون مومې او په دي توګه دجولې له مخې له تواني بشپړ تیرمهال سره سمون خوري .

| گڼه / وګړي | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | ولاړ شولای ـ شوای | ولاړ شولای ـ شوای |
| ۲ | رر رر رر | رر رر رر |
| ۳ـ | رر رر رر<br>ولاړه رر رر | رر رر رر<br>ولاړي رر رر |

۷ـ امري بشپړ اوسمهال چې یواځې په دویم وګړي پورې اړه لري لکه:

ولاړ شه! ولاړ شئ!

۸ـ تینګاري بشپړ اوسمهال چې له خبري هغه سره یې توپیر یواځې د تینګار وییکي (دې) په ورزیاتولو کیږي.

له نومځرو سره لکه: زه دې ولاړ شم ـ ته دې ولاړ شې ....

بې نومځرو لـــکه: ولاړ دې شم ـ ولاړ دې شې ......

۹ـ غوښتنـي بشپړ اوسمهال چې له ولاړ ـ څخه په سیده ډول توپیر نه لري لکـــه: سر دې ولاړ شه! ګورته ولاړ شې!

۱۰ـ ګومانی یا احتمالي بشپړ اوسمهال چې له ولاړ سره مرستیالکړ (شول) د اړنګ وییکو (شکیه اداتو) یا په بله وینا د اړنګ توکونو په ملتیا اوړون مومي لکه:

ښایي چې ولاړ شم ـ ګوندې ولاړ شم ـ لکه چې ولاړ شم ـ کیږي چې ولاړ شم ....

۲: نابشپړ اوسمهال چې یواځې د ارمانی او توانی لپاره تل ـ یا تلل ـ راځي څکه چې د جولی له مخې له تیرمهال سره سمون لري او نور پاتی ډولونه یې د ځ ـ له ولی څخه جوړیږي چې د تل ـ یا تلل ـ او ولاړ ـ سویلاتیف (بشپړ اند) بلل کیږي

۱ـ خبـــري :

| گڼه / وګړي | يوګـــړي | ډيرګـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | ځم | ځو |
| ۲ | ځـــې | ځئ |
| ۳ | ځـــي | ځي |

۲ ـ اړوتی لکه : که ځم ـ که ځی ......

۳ـ پوښتنی لکه : ځم ځی

٤ـ هيښنی لکه : ځم ! ځی !

٥ـ امري لکه : ځه ! ځئ !

٦ـ تېنګاري لکه : ځم دي ځي دي (له دويم وګړي پرته) .

۷ـ ګومانی چی د (ګوندي) او (لکه چی ) په ملګرتيا دخبري‌هغه غوندي جوړيږي

لکه : ګوندي ځم ـ لکه چی ځم

۸ـ غوښتني ين دوډنلري .

۹ـ ارمانی چی دتل ياپه بله وينا تلل ـ دچارنوم (تللی) په اوزدولو سره جوړيږي

لکه : زه تللاي ـ ته تللاي ......

۱۰ـ توانی چی د تل يا تلل ـ له چارنوم تلی يا تللی سره دمرستيالکړ ( شول )

داوزده چارنوم (شولاي يا شواي ) په ملتيا جوړښت مومی اود ټولو وګړو لپاره په همدي يوه بڼـه

راځی لکه : زه تللی شواي ـ ته تللی شواي ......

دریم ــ داوسترمهال کړ اوړ ون (ګردان):

اوسترمهال یا مستقبل کړ چې پهګانده (اینده)کې دیوه چار پیښیدل څرګندوي ۰ دجولی او مانا له مخې له اوسمهال سره کوم ستر توپیر نلري دا دواړه مهالونه پهیوه نامه ناتیرمهال هم نومول کیداي شي لکه څنګه چې دوکتور تـزي دغه نومونه کاروي ۰ خو بیایې هم د (به) وییکی پهزیاتولو لــــه اوسمهال سره بیلتون راتلاي شي اوپه دې توګهپه پرتلیز ډول د غزیدونکی دغږیدا له مهال نهیوڅه وروسته مهال ښیـی ۰

الف ــ لهلیزند خور ــ اوخوړ ـ څخه:

بشپړلکه: ویه خورم ــ ویه خوري

یا ــ ویه خوړل شم ـ ویه خوړل شي

نابشپړلکه: خورم به ــ خوري به

یا: خوړل کیږم به ــ خوړل کیږي به ۰۰۰۰۰

ب ــ لهنالیزند ځ ـ اوولاړ ـ څخه:

بشپړلکه: ولاړ به شم ــ ولاړ به شي ۰

نابشپړلکه: ځم به ــ ځي به ۰۰۰۰۰

## دکړ رغاونې ( ساختمان ) ډولونه

دکړ تر بیلا بیلو ګرامري ډولونو او اوړونونو ( ګردانو ) وروسته غواړو د ویي رغاونې ( لغوي ساختمان ) له مخې د هغه رغاونه او جوړښت ترکتني لاندې ونیسو ۰ په دې توګه له څلورو ډولو کړونو سره مخامخیږو : ساده ـ بیلښتي ( اشتقاقي ) ـ شاپشاه ـ یاخواپرخوا ـ ترښتي ( ترکیبي ) ۰

۱ـ ساده یا یو ستوي کړ چې سته یا بنسټ یې له یو ګړیزي ( یومورفیمیزي ) ولې څخه جوړوي ۰ او اوړونې ( تصریفي ) مختاړي او روستاړي وروري سیده نښلول کیږي لکه خور ـ چې خورم ـ خورو ـ خوري ـ خوري ۰ ـ خوري ۰۰۰۰ او داسې نورې جوړونې تړي کیږي ۰

۲ـ بیلښتي یا اشتقاقي کړ ۰ چې سته یا بنسټ یې له یو ګړیزي ولې اوکوم تاړي ( افیکس ) څخه جوړوي ۰ په دې مانا چې دکړ ولې جاج ( مفهوم ) دیوه تاړي په ملتیا بشپړیږي او څرګندیږي ۰ یا په بله وینا دغسې یو تاړي دجاج او مانا له مخې دکړ ولې نه بیلیدونکی توک ګڼل کیږي ۰ په دې توګه له ولې څخه لرې کړو تاکلی جاج یې اوړي او یا یې کوږ له لاسه ورکوي لکه : راغلل ـ دړغلل ـ ورغلل ـ راتلل ـ دړتلل ـ ورتلل ـ راکول ـ دړکول ـ ورکول ـ کښیوتل ـ کښیناستل ۰ کښې ایستل ۰ کښینول ـ پوري وتل ـ پوري وهل ـ پوري ایستل ـ پوري کول ۰۰۰ دغه راز ډیر ستاینومونه او څیزنومونه هم د روستاړو په نښلونه داوسمهال کړ ولې ګرځي لکه : لوییدل ـ غټیدل ـ تیریدل ـ کاریدل ـ اوبیدل ـ دودیدل ـ لاسیدل ۰۰۰ یا لوېول ـ غټول ـ تیرول ـ کارول ـ اوبول ـ دودول ـ لاسول ۰۰۰

د بیلښتي یا اشتقاقي او یا مشتق کړ رغاونه داسې لنډه وړ مومی :

۱ـ کړ ولی + مختاړي = راتلل ۰ دړتلل ۰ ورتلل ۰۰۰

۲ـ ستاینوم ولی + روستاړي = لوییدل ـ لوېول یا غټیدل ـ غټول ۰۰۰

۳ـ څیزنوم ولی + روستاړي = اوبیدل ـ اوبول ـ یا دودیدل ـ دودول ۰۰۰

زموږ د ودیزو پوهانو دغې ډلې کړونو ته (( یدل والا مصدرونه )) وایي چې یوه ناپوهنیزه نومونه ده ۰

۳ــ خواپرخوا یا سست ترښتی ( ترکیبی ) کړ ۰ هغه راز کړ ته وایی چی د کړ ستنی یا ښستی له دوو یا ډیرو خپلواکو ګړونو ( مورفیمونو ) څخه هسی سرسري او بهاېزیو ځایوالی موندلی وي ۰ په بله وینا یو پوخ ترنګ ( ترکیب ) یی بللای نشو ۰ داسی چی سره یوځای شوي توکونه نه خپل له لاسه ورکوي او نه پایلی اوبه دي توګه یی پایلی سره جلا جلا خپله اوړونی ( تصریفی ) لوښه ( خاصه ) ترسره کوي حال دا چی په یوه پوخ پارښتینی ترنګ کی د رغنده توکونو ( اجزاوو ) څخونه او ( تصریفی ) پایلی پرورووستی توک باندې پنډیدنه او یوکیدنه ( تجمع او توحید ) مومی ۰ د خواپرخوا کړ رغاونه په دي لاندې ګړنو ( اصطلاحاتو ) کی ښوول کیږي :

۱) ځیزنوم + مرستیالکړ = زمری کیدل ــ کول ؛ زمری کیدل ــ کول ــ زمري کیدل ــ کول ۰ زمری یا زمریانی کیدل ــ کول ۰۰۰۰۰

۲) ستاینوم + مرستیالکړ = مړ کیدل ــ کول ؛ مړه کیدل ــ کول ؛ مړه کیدل ــ کول ۰ مړي کیدل ــ کول ۰۰۰

۳) چاروال کړ نوم + مرستیالکړ = سرخوږ ونکی کیدل ــ کول ۰ سرخوږ ونکې کیدل ــ کول ۰ سرخوږ ونکي کیدل ــ کول ۰ سرخوږ ونکې کیدل ــ کول ۰۰۰۰۰

٤) بیچار کړ نوم + مرستیالکړ = سرخوږلی کیدل ــ کول ۰ سرخوږلې کیدل ــ کول ۰ سرخوږلي کیدل ــ کول ــ سرخوږلې کیدل ــ کول ۰۰۰۰

٥) شمیر نوم + مرستیالکړ = دوه کیدل ــ کول ؛ دوې کیدل ــ کول ۰۰۰

٦) بیاځلی ستاینوم + مرستیالکړ = تود تود کیدل ــ کول ؛ توده توده کیدل ــ کول ۰ تاوده تاوده کیدل ــ کول ؛ تودې تودې کیدل ــ کول ۰۰۰

۷) سربل + ځیز نوم مرستیالکړ = ترلاسه کیدل ــ کول ۰۰۰۰

۸) سربل + ځیز نوم + اوستربل + اړکړ = له سرنه نیول ــ له پښو څخه غورځیدل ــ غورځول ۰ ترپایه پوري رسیدل ــ رسول ۰۰۰۰

٩) ځیزنوم + او ستربل + مرستیالکړ = مخ ته کیدل ــ کول ، شاته کیدل ــ کول ...

١٠) ځیزنوم + اوستربل + ارکړ = پاي‌ته رسیدل ــ رسول ، سرته ختل ــ خیژول ....

١١) ځیز نوم + او ستربل + بیلنښتی کړ = لاس‌ته راوړل ــ لاس‌ته راوستل ....

٤ــ ترښتی (ترکیبی) کړ ، چی له خواپرخوا کړ سرمیں په رغاونه کی توپیر دادي چی دلته مله یا یو ځاي شوي‌توکونه سره یو نه جلا کیدونکی یووالی منځ ته راوړي په دي مانا چی‌مخنس توکسونه‌ یی خپل خج او اوړونی تاړي اوله دي سره مانیزه او گرامري‌خپلواکی له لاسه ورکوي او یواځی وروستنی هغه‌یی دگرد ترنگ په ښکارندویی یوغښتلی خج او اوړونی‌ښی نښانی‌ځان ته اخلی . البته مخنی توکونه یی یا له‌آره ناوړیدونی وي (لکه کړلونه) اویایی په همدغه ترنگ کی خپله اوړونی او گرامري جوله اوچاروماناله لاسه ورکړي وي . ترښتی کړ هم لکه د (خواپرخوا) کړ غوندي په‌ زیاتره کړنو (ایدیمونو) اړه لري لکه‌په دي بیلگو کی:

ځیـزنوم + مرستیالکړ = زړه‌کیدل (میل درلودل) یا ښکاره کیدل ــ کول . غلاکیدل ــ کول

(خج پرمرستیالکړ) کله‌خواپرخوا کـړ بدلیږي .

ځیزنوم + مرستیالکړ = زړه کول (جرئت کول)

ځیز نوم + مرستیالکړ = توره کول (غیرت یا میړانه کول).

ترښتی ځیزنوم + مرستیالکړ = زړه‌نازړه کیدل (تکبی یا مترددکیدل).

بیاځلی ځیزنوم + مرستیالکړ = سترگی سترگی کیدل (انتظار ایستل) برخه برخه ــ

توتو ټوټه ــ ونډي ونډي ــ لوټی لوټی کیدل یا کول ....

ستاینـوم + مرستیالکړ = لوده ــ شوده ــ بدمرغه ... کیدل یاکول .

بیاځلی ستاینوم + مرستیالکړ = لوده لوده ــ شوده شوده .... کیدل یا کول .

بیاځلی کړول + مرستیالکړ = پورته پورته ــ کښته کښته ــ وروسته‌وروسته ... کیدل یا کول .

ځیزنوم + ارکړ = پښه نیول ــ لاس‌اخیستل ــ سرخوزیدل ــ ځان پړ سول ــ ځان وهل ــ ځان وژل ــ ځان‌ژوبلول اوداسی نور منځوال کړونه له اره ترښتی کړونه بریښی .

دویمه برخــــه :

## ناورېدونې ګړونه( INDECLINABLE MORPHEMES )

دګړپوهنې (مور فولوژي )په تیره برخه کې موله نومونو او کړونو څخه خبري وکړې اوپه هغه ترڅ کې مو دهغوړولونه او اوړونو نه (ګردانونه ) وښوول په دې برخه کې غواړو دګړونو (مورفیمونو) یوه بله(دویمه ) ډله ترکتنې لاندې ونیسو . ددې ډلې ځانګړتیا (خاصه) دا ده چې د تیري ډلې (نومونو او کړونو ) په توپیرځانته کوم ازاده ویېزه (لغوي ) مانا نلري بلکې له خپلواکو ګړونو (نومونو او کړونو ) سره یې چار او مانا جوتېږي او له کړولرنو(قیدونو) پرته دغونه ډلې (جملې ) له مرستیالو توکونو څخه ګڼل کېږي . کړولونه بیاله نومونو او کړونوسره داروېا ازادو ګړونـــو (مور فیمونو.) ډله جوړوي .

ناورېدونې ګړونه په دې وروسته توګه بیلابیلې ټولې (کټګوري )او ډولونه جوړوي :

لومړي ــ کړولونه یاقیدونه ( ADVERBS ):

کړولونه هغه ژبنی توکونه دي چې دیوه کړ د پېښېدنې څرنګوالی ښیي داځرنګوالی دکړ دپېښېدلوځاي یا مهال تاکي .اوبایې څرګندتیا ټینګار اودا سې نورې ځانګړتیاوي (خصوصیات) ښکاره کوي . په پښتو کې ا ر کړ ولونه ناورېدونې دي . ناارلکه څیزنومونه اوستاینومونه چې په څــرمه ډول دکړ ولونوپه توګه کارول کېږي البته ناورېدونې نه بلل کېږي . په ټولیز ډول کړولونه داوروسته ویشنه لري :

۱ــ مهالي کړول : چې دمهال له مخې دیوه کړ پېښېدنه اغیزمنوي لکه :

اوس ــ وروسته ــ څکې ــ دمخه ــ پخوا ــ وړاندې ــ سدلاسه ــ سملاسي په سرکې ــ په پیل کې ــ په پاي کې ــ پاي ته ــ بېرته ــ سرته ــ ژر ــ ورو ــ ګړندې ــ ځنډ یا په ځنډ ــ بې ځنډه ــ په بیړه ــ په تلوار ــ په چټکۍ ــ په چابکۍ ــ ووړمه ورځ ــ ووړمه شپه ــ پرون ــ پرون ورځ ــ پرون شپه ــ نن ــ نن ورځ ــ نن شپه ــ نن ګهیځ ــ نن غرمه ــ نن ماښام . . . ــ سبا ــ سباته ــ بل سبا ــ بل سباته ــ ګهیځ ــ سهار ــ غرمه ــ ماسپښین ــ مازیګر .

(مازیګر چیرېږي لوی مه شـــــې ماپه هنګې کې شنه باد رنګ راوړي ووته).

د وخته ــ ناوخته ــ لمر خاته ــ لمر پريواته ــ سږ کال ــ پروسږ کال ــ ووړم کال ــ لاووړم کال (ته ) ــ کال ته ــ بل کال ته ــ لابل کال ته ــ ترڅو ياڅو ــ په ځغاسته ــ په منډه ــ د منډي له مخې ــ د ولاړي له مخې .

اوداسي نور او اوناا کړولونه بيا ځلي ( تکراري ) لکه : ژر ژر ــ اوس اوس ...
لنډه پرلنډه يا لنډه پرلنډه ــ لاس پرلاس ...

۲ ــ ځاني ( مکاني ) کړول : چې ديوه کړ پيښيدنه د ځای او چاپيريال له مخې اغيزمنه کوي لکــــــه :

دلته ــ هلته ــ دلې ــ هلې ــ دوري ــ هوري ــ مخکې ــ وروسته ــ شاته ــ مخ ته ــ بيرته وړاندې ــ لري ــ نژدي ... ( دغه راز کړولونه زياتره مهالی اوتوني دواړه کاره ورکوي په بله وينا هم مهالي او هم توني دي ) ــ کښته ــ ورته ــ لاندي ــ باندي ــ دننه ــ دباندې ــ اخوا ــ ديخوا ــ له لري ــ له نژدي ــ له ورايا له ورايه ــ مخامخ ــ پشا شا ــ مخپورته ــ مخکښته ــ مخ پر وړاندې ــ پرمخ ــ پرشا ــ ستوني ستغ يا ستوني ستاغ ــ سرپرځښې ... ځای پرځای ــ لوړ د لوره ــ لوړا لوړ ــ کوږاکوږ ...... او داسي نور او اوناا ريا ساده او ترښتي توني کړولونه .

۳ ــ څرګندني او ټينګاري کړولونه : چې ديوه کړ د پيښيدني څرګند تيا . حالت څرنګتيا يا ټينګار ښيي لکه : په ځغرده ــ په ډاګ يا په ډاګه ــ ډانګ پيــلی ( ويل ) ــ پټکاره ــ په پټه ــ په څرګنده ــ په غلا ــ په زيار ــ په خواري ــ په بيړانه ــ په ويره خوله ــ په زور يا په زوره ــ په خوښه ــ ورويا په ورو ( اواز ) ــ په نره ــ په مړ وسترګو ــ په ټيټو سترګو ــ په ځګوسترګو ــ په هسکه غاړه ــ په کلکه ــ په ټينګه ــ زړه نازړه ( کول ــ ويل ... ) ــ په ناسته ــ په ولاړه ــ په منډه ــ په ملاسته ــ هرومرو ــ زازو ــ په هرډول ــ په هره توګه ــ هيڅ په هيڅ يا هيڅ په هيڅه ــ خوشي په خوشي ــ په اوږدو ــ په لنډو يا په ساره ـ څه ناڅه ــ زړه نازړه ــ لږ و ډير ...
يا د اوږد و ګړنو په بڼه لکه : وانبه پرخوله رسي پرغاړه ( ورتلل ) .......

دويم – ويیکی (ادوات PARTICLES ) :

د اهم دناوړیدونیو یا آزاد و ګړونو ( مورفیمونو ) یوه غوره برخه د ه او بیلګی یې په دي وروسته ډول دي :

۱ – اړیکوییکی (ارتباطی ادات CONJUNCTIONS ) : چی څومره والی او څرنګوالی یاورته والی له مخی سره اړي او څرمه غونډلی (جملی ) نښلوي اوپه دي توګه دوه دوه سره غاړه کیږي چی له لومړي سره یی زیاتره( چی ) هم ملګري کیږي که څه هم(چی) پخپله ځانته یو اړیکوییکی هم دي ۰ اوپه ګډه د دوو ټوټویا غونډ لو اړیکی ټینګوي لکه څومره او هومره په دي غبرګه غونډ له کی ۰ څومره دیګ هومره تیپر ۰ نوري داس جوړ ي لکه : څنګه چی – هس ۰ که څه هم – بیا هم ۰ څومره چی – هومره یا هماغومره ۰ چیري – هلته ( چیري دي بنه هلته دي شپه) هس – داس – همداس – همدارنګه – همداراز – هغس – هماغس یاهمغس – خو – مګر همدغسي – په همدي ډول – په همدي راز ۰ چی – نو ۰۰۰۰ په کدهاري ګړدود کس ځکه هم دڅنګه پاره پرځای کوي لکه چی وایس ځکه چی ناروغ وم نو درمل می وخوړ ل ۰ (که)) بیاپه اړ ونیکو کی یو اړوییکی دي چی د دوو غونډ لو ترمنځ یوا ړ ( شرط ) ټینګوي لکه که ته راشی نوزه به هم راشم ۰

۲ – ورتس یاتشبیهی ویکی چی په دودیز ګرامر او ادبی فنونو کی یی (حروف تشبیه) بولی هغه وبکی دي چی ددوو یازیاتو شیزونو یاپدیدو ورته والی او مشابهت ښیی لکه :

لکه – غوندي – په څیر – په رنګ – په شان – په دود – په توګه – په ډول – په راز ۰۰۰۰

۳ – تړوییکی (عطف توري ) چی دوه توکونه ( ویی ) یاغونډ لی سره ملګري کوي لکه او – و – که – یا – سره په دي بیلګو کی : باغ وایډ ګلونو پکی ناست وایزه اوته –( و ) او (او ) سره همغانیزدي اوواځی غزیز ( فونو لوژیکی ) توپیر سره لري همدغه (او) دي چی په زیاته کاریدنه پر( و )اوړي لکه موروپلار – خور و ورور مګرکه له خپلواکپاي ویی سره بل ویی تړل کیږي نوپه اره بڼه راځی لکه کاکا او ماما ۰۰۰

بل داچی زیاتره (او) یو نحوي ترړون ښیی او(و) یو لغوي‌ترړون ..... همدارنگه (که) او(یا) هم همسانیز ترړییکی بلل کیږي لکه ښه که بد ښه یا بد ــ (سره) له نورو ترړییکوسره داتوپیر لري‌چی دملگرو توکونو(ویبو یا غونډو لو) ترمنځ نه بلکی تري‌وروسته راځی او هغه سره تړي یاملگري‌کوي .

٤ــ تولوییکی (اضافت توري) چی څیزونه یا پدیدي‌سره یو له بله اړوندوي یا یودبل تړل او ملکیت کوي‌په جولیزډول پښتو یواځی یوتولوییکی (د) لري لکه: دهلك خولی ــ دپښتو څانگه داسمان ستوري ...... داچی پښتو څانگه یا دري څانگه ــ ادب پوهنځی یا کابل پوهنتون بی (د) ویل کیږي دلیل دادي‌چی په لومړیو دوو ساړیو (مثالو)کی پښتو اودري دنورو ژبنی نومونوغونډي د ستاینومو بڼه غوره کوي‌او ستاینوم په پښتوکی په خپل څیز نوم پوري سیده‌ نښلی نور ساري یی لکه: افغان اولس ــ باختر اژانس ــ پښتون ځلمی اوداسی نور. او ادب پوهنځی یاکابل پوهنتون دنومونو او تړگونو(ترکیبونو)په توگه د (د) غونډي یونحوي توك ته‌نوره اړه‌نلري: نور ساري یی لکه: طب پوهنځی ــ پلان وزارت ــ دفاع‌وزارت اوداسی نور.(د) دتولو الی‌ترڅنگه لږ و ډیره مهالی پاره هم ترسره کوي لکه دشپی ــ دورځی ... مگر د سربل په توگه د (د) کارونه دلیکی معیاري پښتو له ښستو څخه چپه بریښی لکه دځلمی‌سره دکدهاړ څخه راغلم . همداراز له تشبیهی ویبکو(غونډي ــ په څیر ــ په رنگ ...) د یوه (سربل )په‌توگه هم‌غاړه کیږي لکه دزمري غونډي .... له(ــ پاره) سره نن سبا دومره نه‌ملکیږي بلکی پر(له)اوښتی دي.

٥ــ سربلونه( PREPOSITIONEN )او اوستربلونه( POSTPOSITIONEN ):

سربل یا پیشینه هغه ویبکی دي‌چی تریوه نوم دمخه راځی اوپه‌یوه‌غونډ (فقره) یا غونډ له کی دهغه‌نوم پییر اودریځ ښیی. لکه (په)په (په‌کورکی) ــ (له)په (له ښوونځی څخه) یا (له ځلمی سره) (تر) په (ترکوره پوري) ــ (په) په (په تاپوري) اوداسی نورو بیلگوکی. په دي‌توگه موږگورو چی یو سربل دیوه‌بل ویبکی په‌ملگرتیا چی ترنوم څخه وروسته راځی . نوم په تون ــ وتون اوداسی

نورو پیرو کې اچوي دغه ترنامه وروسته ملګري ويیکې يې (اوستربل) يا پسينه بلل کيږي ، سره له دي چې سربلونه او اوستربلونه دغونډل (جملې) يا په بله وينا په ناخپلواکو او مرستيالو توکونو کې راځي او مانا اوپازه يې د هغو نومونو يا کړنو او کړ ولونو په ګاونډ يتوب کې څرګنديدا ي شي ، خو داچې پردغو اړو يا خپلواکو توکونو يو ډول اغيز لري او د هغو د ريښونو او پيرونــــه (حالتونه) څرګندوي نو اد اره کوونکي ــ چلوونکي يا واکمن توکونه هم بلل کيږي (په نحوي تجزيه کې به پرې پوره خبري وشي) ، د دغه پورتنيو پاړو اوند و له پلوه سربلونه او اوستربلونه په دي وروستيو ډولو ويشنه مومي :

۱ــ په ــ چې له (کې) اوستربل سره د اړوند (مربوط) نوم تون پير يا ظرفي حالت څرګندوي لکه (په ټولګي کې) ــ له (پوري) اوستربل سره بو بل ډول تون پير يا په بله وينا يوبيو ستون ښيي لکه په ځان پوري ــ په تاپوري ــ ستا په خبري پوري (بارتباط ګپ شما) ــ له (سره) اوستربل سره يو لوښتپير (الی حالت) را ښيي، لکه په بياتی سره ــ په چړي سره ــ په وينا سره ــ په زور سره ــ په خوښی سره شـ له (پسې) اوستربل سره يو بل راز تونپير يا پرله پسې والــی څرګندوي لکه : په تاپسې ــ په سختی پسې اسانی راځي ــ په ژمی پسې پسرلی دي لکه په پورتنيو بيلګو کې چې ليدل کيږي کله کله تري ملګري اوستربل لويداي هم شي لکــــه : په خوښه که په زوروي له مظلوم به د ظالم لاس لنديږي په تا اړه نلري (په تاپوري اړه نلري) ــ په ليکانی ليک کيږي (په ليکانی سره ليک کيږي) ، مګر (په کور) له (په کورکې) سره يوراز نه دي ځکــــــــــــــــــــــــــــــه (پــه کــــــــــــــور) له اره (پرکور) دي چې ظرفي نه بلکې استعلايي مانا ښندي ، همدا راز په وخت ــ په کال ــ په مازيګر ــ په بجو ۰۰۰۰۰ د پروخت ــ پرکال ــ پرمازيګر ــ پربجو ۰۰۰۰۰ نا سم يا ناکره بڼې دي ، همدا خبره د ه چې موږ (پهپښتوليکل) او (پرپښتو ليکل) سره توپيروو ،

۲ــ پر ــ يو باندېنی (استعلايي) وييکی دي چې يو اړوند اوستربل (باند ي) يې زياتره غوړ ځيږي لکه پرميز باندي يا پرميز ــ پرځمکه باندي يا پرځمکه ــ پرزړه باندي يا پرزړه ــ

پرسرباندي یاپرسر – پرزړه یو څه پرخوله بل څه – پروخت – پرکور – پرکابل – پرلسو بجو –
پر ۱۳۵٦ کال اوداسې نور ° پرهم د ( په ) غوندې زورپای نوموړنه پراوښتس‌پېرنه اړ زي °
له کندهاري اوتاریخي ادبي پښتو پرته نور زیاتره ګرد ودونه( په )او( پر ) سره ګډ وي پیوه وخت
یادواړه په الی – ارتباطی اوتسلسلي مانا کاروي‌په بله ویناد دواړه د( په )پازه پرځای کوي او
یادواړه په استعلایي مانا پاپه بله زبه دواړه د( پر) دنده تر سره کوي ° لکه د (په پښتو لیکل )
او( پرپښتو لیکل ) بیالګي چې د ( په ) په برخه کې راوړل شوي ° په یوه کره لیکنې‌پښتو کې ددغه
دواړو سرېلونو توپیر ضروري دي ° یوازینی ارهم دادي چې ده توکونه یا دودونه په تاریخي
اواتمو لوژیك‌ډول هیڅکله همانیزاو همپازیزنه وي د همدغه ار په ترځ کې سیمایي ارهم سمبالیزي
که په ګړني ژبه کې دغه ارونه د ومره پرځای‌هم نشي مګرپه لیکنې ژبه کې څواړخیز ګټور نقش لري °
توپیر یانه ګډون – کارویش او پیپتا دنرځ دهري زبې‌بنسټ‌جوړ وي ° په دې توګه په کار دي
( په پښتو لیکل ) د اسې مانا کړو چې یو څه په پښتو ژبه لیکل کیږي نه په بله ژبه ! ( پرپښتو لیکل )
د امانا چې دپښتو په باره کې څه لیکل کیږي نه دبلې ژبې یا بلې موضوع په باب همدا رازپرکابل
اوسیږم دامانا چې دکابل‌ښارپه شاوخواکې اوسیږم اوپه په کابل کې اوسیږم داچې دننه
په کابل یا کابل ښارکې ° په پارسي کې هم د ( به )او( بر) توپیرپه زړه ادب اواوسني ایراني
ادب اولیکه کې پوره څرګند دي ° د ( پر) بل اوستربل ( سرپیره ) دي‌چې ناکره ډول یې ( پرسیره)
هم لیکو لیږد ود لري ° دغه اوستربل هیڅکله نه غورځول کیږي‌که نه مانایي له( باندې) سره
ګډ یږي اویوکیږي ° پرد وییکو مخري( اداتی ضمیر) – پري – پرځای‌کارول چې‌کندهاري
ګړدودواړه لري هم دیاد شوو ژبنیو ارونو له مخې په ټولیزه لیکنې پښتو کې د منښ وړ نه بریښي °
همداسې ترا وپه هم دوراخله چې له ترې اوپې یاپرې سره ګډول ګډېږي پېښوي °

۳ – تر – چې د ( پر)بل ( مقابل ) سرېل دي همغه داچې ترهرڅه دمخه
دپرغوندې د ( باندې )نه چې د ( لاندې ) اند بسندي له دې کبله یې لومړي اوستربل ( لاندې)
دي چې هیڅکله غورځیدنه نه مني لکه ( ترمیز لاندې ) چې ( ترمیز ) بیا ګرد سره باله مانا بښندي

اوهغه توني او مهالي پيوستون دي لكه تر ننگرهاره ــ ترمازيگره چي اوستربل (پوري) يي هرو مرو مطلب‌ښانکوي ٠ دريم اوستربل يي (وروسته) يا راوروسته كړول دي لكه ترغرمي وروسته ياتر غرمي راوروسته ــ ترڅلمي وروسته زما واردي ٠٠٠٠ له څلورم اوستربل څخه (ځني ــ نه) سره پرتليز جاج ښندي لكه تر تاڅخه زه ښه يم چي دغه اوستربل په غور ځيدو (ترتا) هم سم راځي ٠ د دي پرځاي چي د نورو ژبو په پيښو ــ سزني كال د پروسز كال په نسبت لږ پروروندي (بارنده) دي ــ ووايو (سزني كال ترپروسز كال لږ پروروندي دي) لنډ اوكره راځي ٠ (تر) په دغه پرتليزه (نسبتي يا تدرجي) مانا له (له) سربل سره همما نيزكيږي خوداچي (له ــ څخه) ترهر څه د مخه وتون پير (منشايي) حالت څرگندوي ٠نو بيا هم له (تر ــ څخه) سره يي گډول په كارندي ــ يالز ترلږه (تر تاځني) وكارول شي ٠ له تولوييكي (اضافت توري) ــ د ــ سره يي ونجول هم پي ځايه دي لكه ننگرهاريان چي وايي : د كوره په ساراخوښ يم ــ د ويشه په تالا ٠ خوداچي په ډېره كره ليكي پښتو كي دلته د پرتلي مانا موخه (مطلوب) ده نو (تركوره پرسارا خوښ يم ــ ترويشه پرتالا) تري سم برېښي اوله كوره پرسارا خوښ يم ــ له ويشه پرتالا) د ومره تيك اوغوره نه راځي ٠

دغه راز په ختيزو گړدودوكي د (په) ــ (تر) ــ (له) پرځاي هم زياتره (د) كارول كيږي چي دا هم له ژبنيو او معياري ارونو څخه چپ بلل كيږي لكه د ځلمي پسي ــ د ننگرهار پوري ــ د ميزلاندې ــ د ننگرهار نه ــ د ځلمي سره د كندهاره راغلم ــ د پښتو ټولني د لغاتو د څانگي د خوا ــ د تانه يا ستانه زه ښه يم ٠٠٠٠ كره بول يي : په ځلمي پسي ــ ترننگرهار پوري ــ ترميز لاندې ــ له ننگرهاره له ځلمي سره له كندهاره راغلم ــ د پښتوټولني د لغاتو د څانگي له خوا ــ ترتا (څخه) زه ښه يم ٠٠٠٠٠

٤ــ له ــ چي له (څخه ــ نه يا ځني) اوستربل سره له اره د يوه نوم (وتون پير) منشايي حالت څرگندوي لكه له سيستانه يا له سيستان څخه يا له سيستان نه اويا له سيستان ځني ٠ په د ېمه (نسبتي) مانايي كارول يي د ومره كره نه برېښي لكه پاس چي ورته گوته ونيول شوه ٠

(له ) له دويم اوستربل ( سره سره د ملگرتيا ( معيت ) جاج ښندي لکه له ځلمی سره تر هرات پورې ملگري وم او داسې نور . په دغه مانا ين اوستربل ( سره ) پر ( څخه يا څه ) اړول له گېږي کره ليکې پښتو څخه چپ بريښي په بله وينا بايد ( له ځلمی سره ) او ( له ځلمی څخه ) په يوه مانا ونه کارول شي . د ريم اوستربل يې ( وروسته ) دي چې مهالی او تونی کړول ( قيد ) ورسره جوړ وي او له ( تر ) سره يې پازه يو کيږي لکه لرغرمی وروسته کورته ځم چې البته ( ترغرمی وروسته ترې ) زيات غوره بريښي په بله وينا ( وروسته ) د ( له ) نه بلکې د ( تر ) معياري وسرتربل دي . څلورم اوسترېل يې ( راهيسې ) دي چې يو مهالی کړول ورسره جوړ وي لکه له پروسږ کال راهسې ــ له پېروکلو راهيسې ــ له پخوا راهيسې .... ناکره يې : د پروسږ کال راهيسې ــ د پېروکلو راهيسې ــ د پخوا راهيسې ...... په دې توگه ( راهيسې ) د يوه او ستربل په توگه بايد په ( نوم ) سيده ونښلول شي او يل کوم زياتي اوستربل يا بل ژبنی توک ترې د مخه نشي په بله وينا ( له پيرو کلو څخه راهيسې ) نه بلکې ( له پېرو کلو راهيسې ) وويل شي ( د پېروکلو را په ديخوا ) هم مانيـز انډول دي خود پارسی ( ازسالهاباينطرف ) ټکی پرټکی اړونه ده او دمره رواني اولنډون هم نلري . د ( له ) پنځم اوستربل ( پرته ) دي چې د ( سره ) پر او مقابل جاج ښندي دامانا چې د اړوند نوم ملگرتيا نه چې بيلتيا اونشتوالی څرگندوي لکه له بلليو پرته نابللي هم راغلي وو .

٥ــ بې ــ چې زياتره د ( نا ) غوندي يوستاينوميز ( صفتي ) مختاړي دي لکـــه بې کوره ، خولز ونېيره سربلی ځانگړتيا هم لري او هغه هم زياتره د ( له ) په ملگرتيا او د يواځينی اوستربل ( څخه ــ نه يا ځنی ) په د رلودلو ، لکه بې له تا څخه ــ بې له هغه څخه چـــې له تا او بې له هغه هم ويل کيږي مگر ( بې تا ) ويل کيږي او ( بې هغه ) نه .

---

(بې ) تل يو خپلواك سربل نه دي .

٦ــ و ــ يو پخوانی سربل دي چې له ( ته ) او ستربل سره ورتلون پير ( مفعول له حالت ) څرگندوي چې پخوانی څرك يې په لويديزو ( کندهاري ) گړ دود وکې پاتی دي اونورو ټولو گړ دودو له لاسه ورکړي او د هغه اوستربل ( ته ) يوستوی کاروي لکه : وتاته وايم ــ وښوونځی ته ځم ...

د منځنی دوري شاعرانو هم ډیر کارولی اوله کله یی د یوځلی ترنوم وروسته هم راوړي او اوستربل (ته) سره بیا هم پتلیز (برخت) نښلولی لکه رحمان بابا چی وایی : خدای وماته ښکاره کړ هغه لمر [illegible] دي لکه : پیرمحمد کاکړ چی ویلی دي : سوز گداز د محبت هسی ومارا ... په هره توگه د ویونکو د ډیر ښت په لاسوند تر (و – ته)، (– ته) زیات معیاري ارزښت لري ۰

۲– د – که څه هم په ترلیز توګه یو تولوییکی دی خوله (غونډي) اوداسی نورو تشبیهی اوتونی وییکو سره د سربل په توگه هم راځی خوبیا هم د تولوالی ځانگرتیا ښیی لکه د ملس غونډي په رنګ – پرخیر – په ډول – په راز – په توګه – لپاره د کوردننه – د کورد باندي .... چی ترکورد ننه – ترکور د باندي باید مانا ورکړي ۰ چاپیر – چارچاپیر چاگرد چاپیر – تاوراتاو – کښته – پورته – پاس ... هم د تر اوستربلونه دي ۰ پربورتیو وییکو سربیره ۰ ځینی نور راز راز وییکی هم شته چی په غونډه له کی بیلا بیلی پاڅي لري په دوي کی د ځینو پاڅي صرفی بلل کیږي او ځینو نحوي او ځینو د واړه ډوله ۰ صرفی لکه (به) چی د نا بشپړ اونا خبري (لکه گومانی) او او ستر مهال کړ یونوك جوړ وي یا (نه) او (مه) چی کړ نفی یانهی کوي ۰ یا (که) چی اړ وییکی دي ۰ غونډه له پوښتنیا نحوي لکه (نه) و منفی ځواب په توگه – (هو) د مثبت ځواب په توگه. چك (ولی نه) هم ځواب په توګه – (سره) په صرفی ډول لکه سره تلل – په نحوي ډول یا په بله بینا د اوستربل په توگه لکه له ځلمی سره ولاړ – (بیا) د کړ ول او هم اړیکوییکی په توگه – (مگر) یا (خو) د اړیکوییکی په توګه – کورټ رټ – بیخی – چور – هو – سوچ – چورلټ – ورټ – بیخپوره – لا – ان – هن – ایله – په متهی یا مټهی ... د مرستیالو کړ لونو په توګه – و – یه – یا – آ – او – ای د بلن وییکو په توګه – (ایا) د پوښتوییکی په توگه ۰ یا رونیکی لکه اخ – ارخ – اوش – اوه – آه ... چی د ناڅاپی خوښی یاویري او داسی نورو هیجانونو (پارېدنو) څرګندونه کوي چی تر ارو او مرستیالو توکونو وروسته د غونډه لی د توکونو نیمه ډله جوړوي او پرخپل ځای ځیرل کیږي ۰

وبنا وابنتی یا تکیه کلامونه لکه ماسکه – غوله یا غولی – مړه – یامړې – غوچی – چی دي ... کاکا گوري – ماما گوري ... هم لـږ و ډیرپه یوستوو او ترښتی وییکوکی راځی . چی د یا ریلی وییکو یا پارویکو غوندې نومونی پازه نه پرځای‌کوي بلکی راز راز ننگیرنی (احساسات) څرگندوي .

## ۳ـ کـــړاوونـــــه

۱ـ کړڅه راز گړ دي؟ څه او څنگه څرگندونه کوي ؟

۲ـ مصدر له کړ سره څه اړیکی لري اودغه نومونه (اصطلاح ) دڅه لپاره کارول کیده او کارول کیږي ؟

۳ـ دیوه کړ بنسټ او اساس څه څیز دي اوپه څه نامه یادیږي ؟

٤ـ یو اوړ ون موندلی کړ څومره توکونه ارچارونه د رلوداي شی ؟

٥ـ مهال پرڅو ډوله دي ؟

٦ـ کړنوزي څه ته وایی اوپرڅو ډوله دي ؟

۷ـ وگړي او گڼـه سره څه توپیر لري ؟

۸ـ چاروال – بیچار او منځوال کړ په یو یو ساري (مثال) راوبیژنی !

۹ـ کړ نوم یا حاصل مصدر څه ته وایی او څو ډوله جوړیداي شی ؟

۱۰ـ توانی کړ څنگه جوړیږي ؟

۱۱ـ بشپړ (مطلق ) او نابشپړ (غیر مطلق )کړ سره څه توپیرلري ؟

۱۲ـ لراولنډ کړ په یو یو ساري‌وښیاست ؟

۱۳ـ کوزاتیف یا لیزند چارکړ څه ته وایی ؟ له یوه ساري سره یی وښیاست !

۱٤ـ کړول څه ته وایی ؟

۱۵ــ د اوروسته غونډ ونه یا عبارتونه کوم کوم ډول کړولونه دي او په غونډ لوکس

څه پازي پرځای کوي ؟

په سیرانه ــ په ځخرده ــ په ډاګه ــ ډانګ پیلی ــ هرو مرو ــ هیڅکله ــ ژر ــ

ژرژر ــ ورو ــ په ورو ــ په زور ــ په خوښه ــ په ناخوښه ــ وروورو ــ دلته یا دلی ــ هلته یا هلی

یاهله ــ دننه ــ دباندې ــ دلاندي ــ شاوخوا ــ گرد چاپیر ــ دپاسه ــ کښته ــ له کښته ــ

پورته ــ له پورته ــ په لوي لاس ــ په غلا ــ په پټه ــ په ښکاره ــ په څرگنده ــ په غوږ اوږ

یاپه غوږ مالی ــ په تیټو سترگو ۰۰۰۰ نن ــ پرون ــ ووړمه ورځ ــ سږ کال ــ پروسږ کال ــ

کال ته ــ بل کال ته ــ پسرلی ته ــ دشپې ــ دورځې ــ غرمه ــ مازیگر ۰۰۰۰

## ٤ــ کړاوونه ( تمرینونــــــه )

۱ــ سربل څه ته وایي او ستربل څه مانا ؟

۲ــ پښتو تول څو ستر بلونه او اوستر بلونه لري اوهغه کوم دي ؟

د دې لاندې غونډلو تشځایونه په سمو سربلونو او اوستربلونو ډک کړي !

۳ــ ۰۰۰ کابل کی دژمی سارہ وي ــ ۰۰۰ زړه به دي یوه وي ــ درپیښه

به شی بلهٔ ــ زه ۰۰۰ لیکانی سره لیکل کوم ــ زه ۰۰۰ انگلیس ۰۰۰ روس ښه غزیدای

شم ــ کوچیان داوړي ۰۰۰ کابل وي او دژمی ۰۰۰ ننگرهار ۰۰۰ اوس ــ زما په

کالیو ۰۰۰۰ مه خانده ! سپین ۰۰۰ تور اوښتل یابدلیدل ــ اوبه ۰۰۰ ډانګ بیلول ــ

۰۰۰ زده کړې پس ملا وتړه ! په تا ۰۰۰ اړه نلري ــ زه کور ۰۰۰ پنځو بجوځم ــ

۰۰۰ غره باندي واوره اوري ــ ۰۰۰ ډیوي لاندي تیاره ده ــ ځلمی سرییره زمري هم

راغی ــ ۰۰۰ ځلمی پرته نور ټول ولاړل ــ ۰۰۰ ټولگی دننه ــ ۰۰۰ ټولگی دباندي

ــ سپوږمی ۰۰۰۰ منځ داسمان راغله ــ یاخوخوب نشته یا خوما ۰۰۰ نه راځینه ــ که غم ۰۰۰

غمه شرمیدلای ــ ۰۰۰ مابه نه راتلاي ځولی ځولی غمونه ــ ۰۰۰ تور ټوپک ویشتلی راشی ــ

دبې ننګې اوازدې مه راځه مینــه ! دیار ۰۰۰ پاره د رمســـــال جاروکومــــــــــه ۰۰۰

ګود رسور سالو بنـــــــــــــکاره شـــو ـ اشنامې سر۰۰۰۰۰ وطن کیښود ـ ۰۰۰۰۰

تار دزلفو به کېن ورته ګډې مه ـ که زما عمر ۰۰۰۰ ضرور وي تیر به شینه ۰۰۰۰ لویو غرودخداي

نظردي ۰۰۰ لمن ۰۰۰۰ یې زیړ ګلونه ـ که ولاړ شې ۰۰۰ بلخه درسره ده خپله

برخه ـ ګلاب ۰۰۰ اصله شاهزاده دي ـ رامبیل چامبیل یې اردلیان ورسره ځینه ـ ۰۰۰۰

ګود رخه ګانه راوشوه ـ چې کشره خوریې ورسره ګود ر ۰۰۰ ځینه ـ ما ۰۰۰۰ په سرو زرومنظور

دی ـ که دجانان ۰۰۰ لاسه توري خاوري وینه ـ خپه پري نه یم ۰۰۰ جانان سره به یمــه ـ

۰۰۰۰ خدارو سترګودي جارشم ـ چې ۰۰۰ ژړ اشې مرغلري توبوینه ـ ۰۰۰ وچه ړ اګــــه

دلونګو بوي راځینه ـ زما ۰۰۰ تشه خند استه ـ ما به جانان ۰۰۰ لاس نیولی ګرځوونـــــه

که شینکی خال مې دچړو ۰۰۰ څوکو ځینه ـ چې ۰۰۰ سنګره پوري زه درسره ځمــــــه

سپوږمې ۰۰۰ دي څه احسان دي ـ زما جانان ۰۰۰ دیواله سیوري ته ځینه ۰

د پښتو ګړونو ( مورفیمونو ) د ډلبندۍ انځور لیـــــــــــــک

ګړ ( مور فیـــــم )

- آزاد
  - کړونــه
  - نومونه :
    - خیزنوم
    - ستاینوم
    - شمیرنوم
    - نومځري
  - کړولونه
- تړلــی
  - وییکی :
    - اړیکوییکی
    - تړوییکی
    - سربل
    - اوستربل
  - تاړي
    - مختاړي :
      - اوړونی ( تصریفی )
      - بیلبنتی ( اشتقاقی )
    - روستاړي :
      - اوړونــی
      - بیلبنتـــی

## دریمه برخه

### غونډله پوهه ( نحو SYNTAX )

لکه څنګه چې دغږ پوهې دوېښتي پوون (د بحث واحد) غږ دي او دګړ پوهې هغه ګړ دي، نو دغونډلې پوهې دوېښتي پوون غونډله (جمله) ده. په بله وينا غونډله پوهه د غونډله لوي دغه راز دغونډلو ونو (فقرو) او ګړنو (ايډيمونو) جوړښت او د ولونه ترکيبي اووېښتي لاندې نيسي.

غونډله (جمله):

غونډله له دګړونو اوييزونو څخه جوړه شوې اوله لوي غونډله (کل) دي چې يو بشپړ جاج (مفهوم) او برخه (مطلب) اوري پوهول کيږي. په بله پلوه داچې خبري يا وينا په غونډلو کيږي او دي غونډله لو خبري اووينا نه تر سره کيږي. نو دا مي پي هم پيژندلای شو: غونډله له دخبرو — وينا يا ګړ هغه هغه بشپړه خپلواکه ناشوني رغاونه ده چې تري بله ستره رغاونه نشته. په بله وينا: غونډله له دخبرو اووينا تر ټولو لوي پوون (واحد) دي.

دغونډلې جوړښت:

غونډله له لوړي پړاوو برخو يا غونډله ونو (فقرويا ګروپونو) وېشل کيږي چې يو ته نوموال (اسمي) او بل ته ګړوال (فعلي) غونډله وايي. دپازي له مخې نوموال غونډله ته ابنې (مسند اليه) او مبتدا — او ګړوال غونډله ته اينونې (مسند) يا خبر هم ويل کيږي.

په اينونې کي ياګړنده له خپلواړوند و سره راځي (که په چاروال ګړ اړه ولري) او يا ګړي له خپلو اړوند وسره (که په بيچار ګړ اړه ولري). په اينونې کي ګړ او ګړي د واړه له خپلو اړوندو سره راځي په دي اړ چې ګړ چاروال ليږندوي که نه يوازې ګړ له خپلو اړوند وسره راځي. دګړنده او ګړي اړوندونه ستاينوم — شمير نوم — تولنوم (مضاف اليه) — تولوييکس — پيژندوييکي او داسې نور ضروري وييکي کيداي شي اوډګړ هغه ګړلونه (قيدونه). په دي

توگه‌ټول لوي اووار ه یا خپلواك (ازاد) اوناخپلواك یا ناوریدونی گروونـه اوتوکونه په یوه غونډله کی راغونډیدای شی او د همدغو توکونو په کموالی اوزیاتوالی سره زړي یا لوي غونډلی منځ ته راځی •

د یوې غونډلی د ښتوالی لزه کی اړ یا بنیادي توك گردان شوي کړ دي • که هرڅومره ژبنی توکونه سره لنډ ی شی اوکړ ونه لري • غونډه له جوړ والای نشی اوبه سرچپـه ډول پخپله گردان شوي کړ دیوېغونډلی لز ه کی اندازه د ه لکه خوړم – ښښم – ځم او داسی نور • ځینی ناد وده یا غیرعادي غونډلی چی کړ ین غورځی اوبیا هم غونډلی بلل کیږي هغـه بلن غونډلی یا ندائیه غونډلی دي لکه : یه پښتیانانا ! یه ځلمیه ! دغه راز – هو – نه – بنه ښنگه – ولی او داسی نور یـ نښتو ځري هم نیمگړي یا انډ ي کړ شوي غونډلی دي هغه هم د ځبرو اترو او دیالوگ په ډ ول لکه چی یووواین : ته ناروغ یی – بل د اسی ځواب واېی : هو – نه – ولی – ښنگه او داسی نور •

اوس د یوي پوره ساده غونډلی ځو بیلگی وړ اند ي کوو :

۱– ځلمی راغـــی
اینـــی اینـــونـی

۲– د ځلمی وروو راغـی
اینی اینـونی

۳– د ځلمي مشروررور نن کابل ته راغی
اینی اینـونـــی

٤– د ځلمي یووورور نن له کندهار څخه کابل ته راغی
اینـــی اینـونـــی

۵– ځلمــــی لیك کاژي
اینی اینـونـــی

٦– یوهلك یو لیك کاژي

۷– یولیك کښل کیږي
اینـــی اینـونـــی

په لومړۍ غونډه له کې هم اینښ (مسنداليه) له یوه ساده کړند څخه جوړ وي او هم اینښونی له یوه ساده کړ څخه . په دویمه غونډه کې اینښ له داسې کړند (وور ر) څخه جوړ دي چې (ځلمی) ورسره د تولنوم (مضاف اليه) او ( د ) ورسره د تولوییکی په توګه اړوند (متعلق) بلل کیږي خو اینښونی لا همغسې یو یو ستوي کړ (راغی) دي . د دریمې غونډې لې د اینښ کړند (وور) یو ستاینوم (مشر) – یو تولنوم (ځلمی) او یو تولوییکی ( د ) د خپلواړوندونو په توګه لهځان سره ملګري کړي او په اینښونی کې کړ (راغی) له ځان سره یو مهالی کړول (نن) او یو تونی کړول یا په بله ژبه مفعول له (کابل ته) دخپلو اړوندونو په توګه ملګري کړي دي .

د څلورمې غونډې لې په اینښ کې کړند (وور) له ځان سره یو پیژند (یو) د (حرف تعریف) – ځلمی د تولنوم او ( د ) د تولوییکی په توګه ملګري کړي او په اینښونی کې یې کړ (راغی) یو مهالی کړول (نن) او دوه تونی کړولونه (له کندهار څخه) او (کابل ته) په خپلې اړوند ه کې لري . د لومړي تونی کړول په دروتو کونو کې (کندهار) د سربل او د اوستربل (له – څخه) په ملتیا وتو نپیر (مفعول منه حالت) موندلی دي او په دویم تونی کړول کې (کابل) د اوستربل (ته) په ملتیا ورتلونپیر (مفعول له حالت) .

سرله پنځمې څخه د پورتنیو څلورو غونډو لو پرخلاف د نالیزند (لازمی) کړ ځای لیزند (متعدي) کړ نیسي او په دې توګه یې کړي (مفعول) ته هم اړتیا پیداشویده . د پنځمې په اینښ کې کړند (ځلمی) ښبوښتوي راغلی او په اینښونی کې یې کړ (کاږي) له کړي (مفعول) سره ملګري شوي او په شپږمه کې اینښ د تولنوم (عام اسم) په توګه له هلك سره د پیژندنې او ټاکنې لپاره ورسره پیژند (یو) هم ملګري کړي دي او همداراز د اینښونی له کړي (لیك) سره هم یو پیژند . د لومړي پیژند پرځای بل نول پیژند (څوك یا کوم) او د دویم پیژند پرځای بل پیژند (کوم) هم راتلای شي په بله وینا (یوهلك یو لیك کاږي) (څوك یا کوم هلك کوم لیك کاږي) سره څومره پیژ او څرنګیز (کمی او کیفی) توپیر نلري .

اوومه غونډله بیا دپنځمی او شپږمی غونډلی غونډې چاروال لیږندکړنه بلکی بیچار لیږندکړ لري په دې توګه یې کړي (لیک) له خپل پیژند (یو) سره ایښی جوړ وي او (کښل کیږي) دیوه ترښتی کړ په توګه ایښونی • دغه راز کړي (لیک) چی دکړندځای نیسی او کړ وریوري اړه (اسناد) پیداکوي • نوې دودیزه نومونه یی (نائب فاعل) بولی • دادي دپوره ځرګند تیالپاره دځو بیلګو غونډلو انځور لیک (ګراف) وړاندي کوو:

۱ـ نالیږندە غونډلـــه:




۲ـ چاروالە لیږندە غونډ له:



۳ـ بیچاره لیزندۀ غونډ لــــه :




دغونډ لی رغنده توکونــــــه :

پاس مو پرد وو برخو (اینبی او اینبونی) دغونډ لی ویشنه وکړه د لته غواړو په تولیزډول یې ټول رغنده توکونه (ګړوته) ترکتنی لاندي ونیسو او ډهغو دخومره والی لهمخی دغونډ لی جولیز (شکلی) ډولونه ونوموو . دغه توکونه ټول آزاد یا خپلواك ګړونه اولــه ناخپلواکو یا تړلیو ګړونو څخه یواځی وییکی را اخلی . البته تاړی د ازاد وګړونو دنه جلا کیدونکو توکونو (اجزاوو) په توګه دغونډ لی سیده توکونه (عناصر) نه بلل کیږي په دې توګــه یې که ازاد توکونه او ړ ون موند لی ــ بیلبنــتی (اشتقاقی) او تړبنتی (ترکیبی) هم وي دغونډ له پوهی (نحوي) له پلوه بیا هم د ششنی وړ نه دي بلکی هریو دغونډ لی یو یواځینی تــــوك (جز ٔ) یا توك (عنصر) او یا یوون (واحد) ګڼل کیږي لکه : خورم ــ خورو ــ خوړلــی ــ خوړونکی ــ خوړل ــ وړکوم ــ ورکوو ــ وزکړي ــ ورکوونکی ــ ورکول ... زمري کیدل ــ کــول ــ لاسته راوړل اوداسی نور . د ساري په ډول (زه خپلو شاګردانو ته په د رنه سترګه ګورم) .

غونډ له په نحوي ډول اته توکیزه بلل کیږي چې ځلورېي (زه – ته – په – سترګه) ساده توکونه (ګړونه یا ویبونه) دي او ځلورېي (خپلو – شاګردانو – درنه – ګورم) داوړونې (تصریفي) تاړوپه دړلودلو سره اوړونې توکونه (ګړونه یا ویبونه) دي . یا (مخلص یو کتاب ترلاسه کړي دي) په غونډ له پوهیز ډول یوه پنځه توکیزه غونډ له ده چې یې (مخلص – یو – کتاب – دي) ساده توکونه (ګړونه یا ویبونه) دي او (ترلاسه کړي) یو ترښتي توک یا ګړاو یا ویې ، ځکه له شننې سره یې اوسنی یواځینی مانا له منځه ځي او ترښتي چاج له لاسه ورکوي .

دغونډ لې توکونه په لاندې ډول ډلبندي کیږي :

۱– اړیا خپلواك توکونه چې ټول ازاد ګړونه را اخلي . نومونه (ځیزنومونه – مانیونومونه – شمیرنومونه – نومځري) – ګړونه (اړ – مرستیال یا ساده – بیلښتي – خواپرخوا – ترښتي) او کړولونه (اړ او نا اړ) دي .

۲– مرستیال توکونه ، چې په دوي کې ناوړیدونې ګړونه (ویبکي) راځي لکه اړیکوییکي – تړوییکي – سریلونه – او ستربلونه او داسې نور .

۳– په دریمه ډله کې انګوییکي – پاروییکي – بلن ویبکي او داسې نور راځي لومړۍ ډله (اړتوکونه یا خپلواك توکونه) دموضوع څرنګوالي – څومره والي – چاروالي (فعالیت) او داسې نور جاجونه (مفهومونه) نوموي او یا ورته نغوته کوي یا په بله وینا هم ویبزه (لغوي) مانا ښندي هم پښوییزه دغه ډله اړ او کړولونه پرته ټول اوړیدونې ګړونه را اخلي .

دویمه ډ له (مرستیال توکونه دنومونې او نغوتنې پازه نه بلکې یواځې پښوییزه مانا اوچار لري ، مرستیال ورته په دې وایې چې دغونډ لې دارو توکونو – غونډونو او غونډ لو ترمنځ اړیکې ټینګوي .

په دریمه ډ له (پاروییکي – بلن ویبکي ...) دنومونې پازه نلري او دبیلا بیلو ځانګړو ننګیرنو څرګندونه کوي پاروییکي لکه دخوښې (واخ – وخ – اوخ ...) یا

۱ـ یو سړی ـ راغی یا : یوه سړي ـ ډوډۍ وخوړه ۰

۲ـ یوغټ سړی ـ راغی یا : یوه غټ سړي ـ ډوډۍ وخوړه ۰

۳ـ دځلمی مشرورور ـ ولاړیا : دځلمی مشرورور ـ وینا وکړه ۰

٤ـ دځلمی دوه ورونه ـ ولاړل یا : دځلمی دوو ورونو ـ ویناوي وکړي

۵ـ دځلمی دوه مشران ورونه ـ ولاړل یا : دځلمی دوومشرانو ورونو ـ ویناوي وکړي ۰

٦ـ زما یو کشرورور ـ کورته ولاړیا : زما یوه کشرورور ـ وادہ وکړ ۰

په اینبونی کی کړ(آریا مرستیال) ترنورو توکونو وروسته راځی که دغه کړ له دووغبرګو (آراو ناآر) کړ څخه جوړوي نو آر تر مخه او نا آر(مرستیال) وریسی بیخی پای ته راځی ۰ ترکړ (اریا مرستیال) دمخه کړي (که کړ چاروال لیزندوي) او کړي بیا له خپلو اړوندونو وروسته ځای نیسی ۰ کړ ول (که چیریوي) زیاتره ترکړي دمخه راځی خو که دوه کړ ولونه په یوه اینبونی کی راغلی وي او یو مهالی اوبل تونی یا بل ډول وي نوزیاتره مهالی له تونی یابل کړ ول اوکړي څخه مخکی کیږي ۰ تونی یا بل کړ ول بیا کیدای شی ترکړي وروسته ځای ونیسی لکه په دي لاندي غونډ لوکی :

۱ـ زمري ـ نن ازمونه ورکړه ۰

۲ـ زمري ـ (نن) (په بریالیتوب سره) ازمونه ورکړه ۰

۳ـ زمري ـ (نن) (له خپل ورور سره) (له کندهاره) (کابل ته) راغی ۰

په پاسنیو غونډ لوکی (نن) مهالی کړ ول دي (په بریالیتوب سره) او (له خپل وروړسره) څرګندنی او (له کندهاره) او(کابل ته) تونی کړ ولونه دي ۰ همداراز (ازمونه) او(خپله ازمونه) کړي (مفعولـــونه) بلل کیږي ۰

دغونډ لی بشپړ اند توکونه :

سرپیره

یوه غونډ له پریورتیو نومول شویو توکونو ځینی بشپړ اند (متمم) توکونه هم لري لکه اخج ـ اهنګ ـ بیلتون اوپیوستون اودغونډ لو دپای غاړه (لحن) ۰ دغزپوهی له مخـــ

دغه ځانگړ تیاوي(خصوصیات) دویمنی اوازونه( فونیمونه) بلل کیږي چې دلومړیو یا اروااوازونو (لکه ا ــ ب ــ پ ــ ت ــ ټ ... ي ) غونډې دگړهار په بهیر کې دپرله پسیوالی یاتسلسل (لینیال )لوښه نلري او دغونډ له پوهې له مخې هماغسې مانیز او چاریز(تعاملی یافنکشنال) نقش او اغیز لري لکه ارتوکونه (گړونه) ځکه دغونډ لو مانیز اوینبویز ډولونه سره توپیروي . نوله دي کبله خج ــ اهنگ ــ بیلتون او پیوستون اودغونډ لو دپای غاړه (لحن )دغونډ لی بشپړ اند توکونه بلل کیږي .

ا ــ اهنـــــــگ :

دغونډ لو اهنگ ځلور ډوله دي : خبري اهنگ ــ پوښتنې اهنگ ــ هیښنی اویلنی (تعجبی اوندایی) اهنگ او امري‌اهنگ . په بله وینا خبري ــ پوښتنې ــ هیښنی اریلنی اوامري‌غونډ لې سره دځپلو ځانگړو اهنگنـــو په مرسته توپیریږي .(۱)

۱ــ دخبري‌غونډ لی اهنگ اوارپیل کیږي اوبیا غورځیدلی پروت پای ته رسی

لکـــه : زمري ــ راغی .



۲ــ دپوښتنې غونډ لی اهنگ ټيټ پیل موس او بیا نیغ شوي پروت پای ته رسی

لکـــه : زمري ــ راغی ؟



که په سرکی یې پوښتنو مخري یا پوښتوییکی راشی بیانو اهنگ په سرکی لوړیږي .
۳ــ دهیښنی ــ بلنی ــ گومانی اوداسی نورو غونډ لو اهنگ کابو یوراز راځـــی

اوهغه داچې ټيټ پیلیږي بیا پورته ځی اوپه پای‌کی ریب پای ته رسیږي لکه :

زمري ــ راغـــی !



۲ــ خـــج :

لکه څنگه چې په‌غږ پوهه کی ورته نغوته وشوه . غونډ له یې خج هماغه پیاوړي خج دي چې دنورو توکونو په ترڅ کی یې پربوه راشی اوهماغه خجن توک ترنورو توکونو زیات موخن

---

۱ــ دلته له پوهاند الهام څخه الهام اخیست شوي( روشی جدید د رتحقیق دستور زبان دري ۱٤۲ ــ ۱٤٤ مخونه ــ همداراز دزیار دژپوهنی بنستونه هم دپاملرنی وړ دي .

(مطلوب ) ښيي • نور ټوکونه یاهيڅ خج نلري اویا دهماغه یوه پیاوړي خج تر اغیز لاندي کمزوري ویل کیږي • په دي ډول د ږي رازه غونډ له ييز خجونه سره توپیروو • پیاوړي – لږ پیاوړي او کمزوري لکه داولمیرپه دي سندره کی ( ستاد سترګو بلا واخلم بیاد ي سترګی ولی سري دي )پر( ولی ) پیاوړي – پر(واخلم )لږ پیاوړي اوپر ( سترګو ) کمزوري خج اوریدل کیږي •

۳– بیلتون او پیوستـــــون :

بیلتون او پیوستون د امانا چی دغونډ ویا غونډ لو دپاي وییونه سره پیوست اوبی لارغه (بی‌مکثه ) وویل شی اویا سره ناپیوست په لارغه (مکث )• په دي توګه که دهماغو یوراز غونډ ویا غونډ لو ترمنځ بیلتون پرپیوستون بدل شی اویا سرچپه • نو هغه جاج او مانا یی سره نه توپیریږي چی دوینکی موخه او مطلب وي • داچی دغه بیلتون او پیوستون یوازی دنحوي یوونونو (واحدونو ) ترمنځ نه بلکی دغږپوهیزو هغو ترمنځ هم نقش او اغیز لري نودخج آهنګ اوغاړي (لحن) غوندي بیلتون او پیوستون له اره دویمی اوازونه( فونیمونه ) دي • بیلتون او پیوستون دلیکونکی په دي کړ ي (بیت ) کی ښه تراجوتیږي :

کړي که بخشش د وصل رازاره – زړه سوزول پرما ملنګ ښـــــــه دي •

دلته که(ز) له مخنی وییی یاپه بله وینا له مخنی اواز (الف ) سره پیوست وویل شـــ مانا یی داسی راځی چی (یه یاره !) که ماته (دوصل راز ) را بخشش کړي اوکه نه (ز ) له (یاره ) سره پټلیزه وویل شی یا په بله ژبه د (الف )او (ز ) ترمنځ بیلتون او – لارغه راوړل شی بیاد امانا ښندي چی (یه زیاره)که ماته (د وصل بخشش )راکړي په د ي توګه که دمخنی مانا موخه وي • په کار دي د (راز) او(یاره ) وییونو یاپه بله ویناد (ز ) او(ي ) ترمنځ په وینګ (تلفظ )کی لارغه او بیلتون او له بله پلوه د (الف )او(ز) ترمنځ پیوستون راشـــی • او که وروستی مانا موخه وینو په کار دي د (را )او(زیاره) یاپه بله وینا د (الف )او(ز) ترمنځ لارغه اوبیلتون اوله بله پلوه د (ز ) او( ي ) ترمنځ پیوستون راشی •

او که وروستی مانا موخه وینو په کار دي د ( را ) او ( زیاره ) یا په بله وینا د ( الف ) او ( ز )

ترمنځ لاړغه او بیلتو او له بله پلوه د ( ز ) او ( ي ) ترمنځ پیوستون راشي . په دي ډول

ترموږ ي نیم بیتي یا غونډه له دوه رازه کاږو :

دلومړي مانا له مخي : کړي که بخشش دوصل راز ــ یاره !

د دویمي مانا له مخي : کړي که بخشش دوصل را ــ زیاره !

همدا رنگه د راډیو افغانستان دخبرلو ځانګړي ځایه بیلتون او پیوستون په دي وروسته غونډولو

کي خوږه مانیز بدلون پیښوي : دجنوبي افریقا صدر اعظم جان ــ فورسترووبل ــ دنیپال پاچا

دیوانن ــ خپل هیواد ته ستون شو . په دي توګه ( جان ) دصدراعظم توک ګرځي نه دفورستر

او ( نن ) د ( دیوا ) توک ګرځي نه د وجلاوي ( کړ ول ) . لیکښي د نوروغونډي د همدا راز دوینځیو

ترکونو ( خږ ــ اهنګ ــ لحن بیلتون او پیوستن .... ) سمبولونه بلل کیږي .

دایښي او اینښونې سمون :

دایښي او اینښنو ترمنځ همغه سمون مطلب دي چي دګڼې ــ نوزي او وګړي

له مخي د کړند یا کړي او کړ ترمنځ راځي . دګڼې له پلوه سمون داچي که کړند یو ګړي وي

نو کړ ورسره یوګړي راځي او که کړند ډیر ګړي یا ډیر ګړي وي اند ول ( لکه جنس ) وي . کړ

ورسره ډیرګړي راځي دنوزي له پلوه داچي که کړند ښځینه وي کړ ورسره ښځینه کارول کیږي

او که کړند نرینه وي کړ ورسره نرینه کارول کیږي او د وګړي له مخي سمون داچي کړ باید له

هر یوه وګړي ( لومړي ــ دویم ــ دریم ) سره سم وکارول شي نه داسي چي دلومړي وګړي کړ

د دویم وګړي لپاره په کار واچول شي او داسي نور . لکه په ګړپوهه کي موږ چي ولیدل دغه د ود

( قاعده ) بیدودي ( استثناء ) لري لکه په چاروال لیږند تیرمهال کي چي کړ د کړند نه بلکي

دکړي ( مفعول ) اړوند ( تابع ) دي په بله ژبه دګڼي ــ نوزي او وګړي له مخي کړ له کړي سره

سمون خوري نه له کړند سره . همدا راز دغه سمون په اوس مهال کي یوازي دګڼي او وګړي له

پلوه شه ناخه ږنتینوالي موږ مګر د نوزي له پلوه هیڅ نه . په دي وروسته غونډو لوکي دایښي

او اینښونې ترمنځ سمون له ټولو استثناګانو سره لیدلای شو :

۱ـ نالیزند تیرمهال :

۱) زه ـــــ راغلم

۲) ته ـــــ راغلی

۳) دي ـــــ راغی

۳) دا ـــــ راغله

٤) موز ـــــ راغلو

٥) تاس ـــــ راغلاست

٦) دوي ـــــ راغلل

٦) دوي ـــــ راغلـں

۲ـ لیزند تیرمهال ( چاروال ) :

۱) ما ـــــ خټکں وخوړ

ما ـــــ خټکي وخوړل

ما ـــــ هندوانه وخوړه

ما ـــــ هندوانں وخوړي

۲) تا ـــــ خټکں وخوړ

تا ـــــ خټکي وخوړل

تا ـــــ هندوانه وخوړه

تا ـــــ هندوانں وخوړي

او همداس ددریم وګړي لپاره ۰

۳ـ لیزنــد تیرمهال( بیچار ) :

۱) زه ـــــ وخوړل شوم

۲) ته ـــــ وخوړل شوې

۰۰۰۰۰ همداس ترپایه ۰

٤ـ ناليزند اوسمهال :

١) زه —— ځم

٢) ته —— ځې

٣) دي —— راځي

...... همداسې ترپايه ٠

٥ـ ليزنداوسمهال (چاروال) :

١) زه —— ډوډۍ خورم

٢) ته —— ډوډۍ خورې

٣) دي ـ دا —— ډوډۍ خوري

...... همداسې ترپايه ٠

٦ـ ليزنداوسمهال (بيچار) :

١) زه —— خوړل کيږم

٢) ته —— خوړل کيږې

٣) دي ـ دا —— خوړل کيږي

...... همداسې ترپايه ٠

نومواله او کړواله غونډ لـــه :

که ديويغونډ لي په اينونې کې دآريا مرستيالکړ (لکه خوړل ـ کيدل ـ شول) پرځاي يوائې (دي ) آريا ددغه مرستيالکړنوري بڼې اوډولونه راشي ٠ هغه غونډ لـــه (نومواله) غونډ له پلل کيږي که نه کړواله غونډ له .لکه زرين ـ روغ دي يا و ـ يا : هلکان ـ ناروغه دي يا و٠ زرينـــه ـ ناروغه ده ياوه يا : نجونې ـ ناروغې دي ياوې ٠

دغونډ لی مانیز ه ولرنــــه :

غونډ لــی دکړ دودله مخی په خبري یا بیانیی اوناخبري یا انشایی اویاالتزامی غونډ لو ویشل کیږي .

١ــ خبــــــري :

١ــ ببرك ـــــــ ولاړ
٢ــ ببرك ـــــــ تللی دی
٣ــ ببرك ـــــــ تللی و
٤ــ ببرك ـــــــ تــــه
٥ــ ببرك ـــــــ ځـــی
٦ــ ببرك ـــــــ به ولاړ شـــی

.... او داســـــی نور .

٢ــ ناخبــــــــري :

١ــ ببرك ـــــــ ولاړ ؟ (پوښتنی )
٢ــ ببرك ـــــــ ولاړ ! (هیښنـــی )
٣ــ ببرك ـــــــ به تللی وي ! (گومانی )
٤ــ (کاشکی) ببرك ـــــــ به تللی وای ! (ارمانی )
٥ــ ببرك ـــــــ د ي تللی وای ! ( تینگاري )
٦ــ (که) ببرك ـــــــ تللی وي (اړوتی )
٧ــ ببرکه ـــــــ ځــه ! (امري )
٨ــ ببرك ـــــــ به ولاړ شی (گمانی او تینگاري )

...... او داسی نور .

دغونډ لی‌جولیز ډولونه :

دجولی او شومره والی له مخی غونډ له یو ستوي‌وي یاغبرګه ــ یاګډه اویاګډ لی ۰

۱ــ یوستوې‌غونډ له هغه رازغونډ له ده چی له دووغونډ ونو ( اینس او اینبونی )

څخه جوړه وي لکه :

ځلمی ـــــ یبوه کوي

یوغښتلی سړي ـــــ په ځغاسته راغی

دکندهار انار ـــــ خوازه دي

بوره ـــــ نشتـــه

۰۰۰ اوداسی نوري ۰ یوستوې غونډ له دنورو درو ډولو ښست بلل کیږي ۰

۱) اره یو ستوي‌غونډ له‌چی یې اینس ئه‌یوه ( کړند ) یا کړي او اینبونی له

یوه (کړ ) ــ او ډلیزنډپه ترڅ کی ــ له یوه (کړ ) څخه جوړوي اوددوډله مخی ددغو

درو واړو توکو(کړ ــ کړند ــ کړ) اړوندونه له دوو توکسو څخه تیري ونکړي لکه :

زمرک ـــــ ځـــ

زرک ـــــ اویه ځښــــ ۰

یوه نجلی ـــــ یو لیکی لولی ۰

یوه ښکلی نجلی ـــ یـــوپنډ لیکی لولی

زما یو ملګري ـــــ هیڅکله خپل کورنی کار نه هیروي

۲) ارته یو ستوي‌غونډ له چی په اینس یا اینبونی یا دواړو کی دکړ ــ کړند یاکړي

یادرو واړو اړوندونه له دوودوو توکونو څخه تیري وکړي اویه دي توګه پکـــس

زیات ارتوالی راشي لکه : دعراق دعربی جمهوریت رئیس‌حسن البکر ـــ په بله میاشت د

افغانستان دجمهوري دولت پایتخت مرکز کابل ته راشي ۰

یا : دافغانستان دجمهوري دولت یوه کلتوري ډله ــ دشوروي اتحاد دپوهنو داکادمی‌په بلنه

هغه هیوادته سفرکوي ۰۰۰ اوداسی نور۰

۲ــ غبرګغونډ لــــــه :

غبرګغونډ له هغه ده چې دیوه اینس او یوه اینسونی پرځای دوه دوه اینسـ اواینسونی ولري یاپه بله وینا که دیوې پوهونی او مطلب دبشپړتیا دوو اړوندو مطلبو دڅرګندونی لپاره سره دوې غونډ لی په کوم اړیکوییکی یا لارغه (مکث) غبرګی اوملګري شی • یوه غبرګغونډ له منځ ته راوړي • داړیکوییکو دډولونو له مخې سره ډول ډول غبرګغونډ لی توپیرولاي شو دغبرګغونډ لی په دواړو بیلا بیلوغونډ لو کی یوه اره یا خپلواکه اویله څرمه (فرعی) یــا بیواکه غونډ له بلل کیږي • اره یا خپلواکه په دې مانا چې ار مطلب او موخه پکې څرګندیږي اوځانته په خپلوبښود ریداي شی • څرمـه یابیواکه په دې مانا چې ار مطلب اوموخه پکـی نه څرګندیږي اوځانته پخپلو پښو د ریداي نشی په دې توګه په یوه غبرګغونډ له کی بیواکه یا څرمه له خپلواکی یااری سره دیوه مطلب په څرګندونه کی مرستیاله او بشپړوونکی اوسی • داړیکویکو له مخې د غبرګغونډ لی ډولونه په لاندې توګه ښوول کیږي :

۱ــ تړ غبرګغونډ له : چې د واړه یوستوي غونډ لی پکی په یوه تړوییکی (او) یا لارغی سره یو ځاي شوي وي لکه :

زما زوي اووه کلن (دي) او لورمې شپږ کلنه ده •

یا : زما زوي لس کلن دي او ستا لور دولس کلنه (ده) •

۲ــ اړوتی غبرګغونډ له : چــې یې یوه (زیاتره لومړۍ) یوستوي غونډ له بیواکــه او بله (زیاتره دویمه) خپلواکه وي • په دې تــوګه دلته بیواکه غونډ له آړ (شرط) بلل کیږي او خپلواکه اړوتی ، لکه :

که ته راشی ــ زه به راشم •

که وریځ سپینه شی ــ باران کیږي •

که شمال نه وي ــ ونه نه ښــــوري •

دکه په وړاندې داړوتی غونډه لی په سرکی د (نو) اړیکوییکی هم راتلای شی لکه : که شمال نه وي ـ نو ونه نه ښوري ۰

۳ـ توسنی (علتی) غبرگغونډه له : چی ین دواړه یوستوي غونډه لی سره په یوه یاغبرگو توسنوییکو ( ځکه ـ ځکه چی ـ چی ـ داچی ـ په دي چی ـ نو ۰۰۰) غبرگی‌شوي وي ۰ په دي ډول خپلواکه توسنی (معلوله) اوبیواکه توسن (علت) غونډه له‌نومیداي شی لکـــه :

زه راغلم ـ ځکه تابللی وم یا : زه راغلم ـ پـه دي چی تابللی وم ۰

تابللی وم ـ ځکه راغلم یا : تابللی وم ـ نو ځکه راغلم ۰

ځکه راغلم ـ چی تابللی وم یا : ځکه راغلم ـ په دي چی تابللی وم ۰

داچی تاویلی وو ـ نوراغلم یا : ځنگه چی تاویلی وو ـ نو ځکه راغلم ۰۰۰۰

٤ـ څرگندنی ( بیانـی ) غبرگغونډه له : چی دویمه مله غونډه له دلومړۍ هغـی دزیاتی څرگند تیا لپاره وي اوڅیوي پوښتی ځواب وایی : ددغسی څرگند تیا دڅرنگوالی له مخی داالاندې کوچنی ډولونه دیادولو دي :

۱) موخنه یامراسی څرگندنی غبرگغونډه له : چی په خپلواکه غونډه له کی د راغلی مطلب یا پیښـی موخه په بله څرمه غونډه له کي څرگنده شی لکه :

سنك ایران ته ولاړ ـ چی ځانته کار مزدوري پیداکړي ۰

زه راغلم چی تاووینم ۰۰۰۰۰

۲) مهالی‌څرگندنی غبرگغونډه له : چی لومړۍ (بیواکه) غونډه له ددویمی (خپلواکی) غونډه لی څرگندکړي چار اوپیښی مهال اووخت تاکی لکه :

چی ته راغلی ـ زه به ولاړ شم یا : چی ته راغلی ـ نو زه به ولاړ شم

کله چی ته راغلی ـ زه به ولاړ شم یا : کله چی ته راغلی ـ نو زه به ولاړ شم

سم چی ماوریرانیست ـ پرهغی می سترگی ولگیدي ۰

زه به هله درشم ـ چی ته می وغواړي ۰

یا : زه به هله درشم — هرکله چه‌ تا وغونتم

هومره به دي مړ نکړم — څو دي رنگ دمړي نکړم

هله به‌خبرشې — چې تاروجبی له ورشی !

هله به دي په یادشي — چې دي یودبوال ته مخ بل ته دي شاشي !

۳) تونی څرگندنی غبرگغونډ له : چې څرمه‌غونډه له‌ یی داری لپاره تون(ځاي )

وتپاکی لکه : چیري دې نه — هلته دي شپه !

چې‌نه کار — هلته څه کاریـ ا: چې دي نه کار — هلته څه کار !

چې له کومې راغلی یې — پرهماغه ځه !

چیري چې اوسي — په‌خوي به د هغوي اوسي یا : چیري چې اوسی — په‌خوي به

دهغـــوي اوسي !

یادپردې یو ژبو په بې ځایه پیښنو لکه :

دهند جمهوررئیس‌شوروي ته ولاړ — ( چیري ) چې له شوروي مشرانو سره خبري کوي

دلته ( چیري ) یو زیاتی توک دي • البته له( چې ) سره (کوي ) نه بلکی ( وکړي ) راځی •

( تون ) دزیاتی څرگندتیا لپاره له (چې) سره (هلته ) هم ملگري کیداي شي لکـــــه :

دهند جمهور رئیس شوروي ته ولاړ چې هلته‌له شوروي‌مشـــرانو سره خبري‌کوي •

٤) وگړیزه څرگندنی غبرگغونډه له : چې په دواړو ملوغونډه لوکی راغلی کړندیاکړي

یو (وگړي )وي لکه :

څوك چې خوبکړي — نر کیږي به زیزوي •

یا : دنورو ژړي په پیښنو په ناسم ډول :

ځی : هغو خوارو ته جنت وگټو — ( څوك ) چې له موره دوزخیان پیدادي

دلته داپایله اخیستلای شو چې ( څوك ) د ( چیري) — (کوم ) — ( څه ) —(کله ) اوداسی‌نورو

څرگندنی اړیکو ییکي‌ غونډي یواځی دهماغی څرمه‌غونډه لی په سرکی له( چې )سره راتلاي شی

چې تر اړي دمخه وي دغه توپیر په تیرو دواړو سارو(مثالو) کی ښه ترا لیداي شو •

۵) څیزواله ځرګندنی غبرګغونډه‌له : چی په دواړو ملوغونډه لوکی راغلی کړندونه یا کړي یو (څیز) وي لکه :

څه چی کړي — هغه به ریبـــــي

څه چی وي — هغه به وي

۶) کړولی (قیدي) ځرګندنی غبرګغونډه‌له : چی د دواړو غونډه لواړیکو ییکـــــی کړو لونه وي لکه :

اســـري ځــه — ژوژاځــــــــــه

یا دي لنډی دویمه برخه : پراویو غرو د خدای نظر دي — پرسریي واوري — پرلمن یی زیړ ګلونه

۷) پرتلیزه ځرګندنی غبرګغونډه‌له : چی د دواړو ملوغونډه لو اینی سره داړیکو ییکو په وسیله اندولی — پرتله یا همڅیر شري وي لکه :

ښنګه دیګ — هسی تیپـــریا : هسی یی تیپــــر (کړپرینوول شوي)

ښنګه غر — هسی یی کړیوړي (کړ پرینوول شوي)

یوړي ګنهی — مل یي ښتهی

مل دي ومره — یوږي مه مره

یا : مل دي ومره — د ملو سردي مه مره

مل پنګان سرځی — دیوي شمی ژړا سره

۸) اړپیچنـــه (متضاده) ځرګندنی غبرګغونډه‌له : چی د اري اوځرمی ځرګندونی یا اینی سره اړپیچ یابه والی (تضاد یا تقابل) ولري لکه :

که څه هم مازیار ایستلی نه و — (خو) پیا هم بریالی شوم

سره له دي چی ناروغ وم — پوهنځی ته راغلم

یا : سره له دي چی ناروغ وم — خو بیا هم پوهنځی ته راغلـــم

یا د یوی ارتی یوستوي غونډ لی په بنه :

له ناروغی سره سره پوهنځی ته راغلم ·

لهولسه وو ځـــه ـ له نرخه مه ووځـــه

که غر لوي دي ـ پر سر یی لارده

خپل خپل دي ـ پردي په ډیرو نارو خپل دي

دښمن به دي وخندوي ـ دوست به دي وژړوي

شمه که سوزیږي رڼـا هم لري (گوره په خندا کی ژړا هم لري )

۹) سرغاړي ( منصرفه ) څرگندنی غبرگغونډله : چی دویمه ( څرمه) غونډله یی دلومړۍ ( اري ) له څرگندونی څخه سرړنړوي او نور زیات څه څرگند کړي لکه :

ځلمی گرم نه دي ـ بلکی زمري گرم دي

یا : ځلمی گرم نه دي ـ چی زمري گرم دي

۱۰) بشپړانده څرگندنی غبرگغونډله : چی دویمه ( څرمه ) یی د دویمی ( اري ) دجاج ( مفهوم ) په بشپړو لو یا پراخولو کی مرستیاله اوسی لکه :

خوشال خټـک نه یواځی شاعرو ـ چی تورزن هم و یا : بلکی تورزن هم و ·

یا : خوشال خټك یواځی شاعر نه و ـ چی تورزن هم و یا : بلکی تورزن هم و ·

یا : خوشال خټك لوي شاعرو ـ چی لا اتل هم و ·

دلته گورو چی ( نه یواځی ) د ( چی هم ) یا ( چی لاهم ) اویا ( بلکی هم ) په ملگرتیا د دواړو غونډ لو اړیکی ټینگوي یا په بله وینا ( نه یواځی ) او ( چی هم ) یا ( نه یواځی ) او ( چی لاهم ) یا ( نه یواځی ) او ( بلکی هم ) د دواړو ملوغونډ لو ترمنځ دبشپړتیا اړیکی څرگندوي ·

همدومره خبره ده چی که د پوروی ( بلکه یا بلکی ) له کارونی څخه ډډه وشی نودپټـــی ( جبران ) لپاره یی په همغه څرمه غونډ له کی دا یئنی پرار توك باندي یو پیاوړي خج راوړل په کاردي چی له همدغه خج سره اهنگ هم پتلیز ( جوخت ) لوړ ولاړ شی ·

۳ــ گــډه غونډ لــــــه :

گډه غونډ له هغې ته وايي چې په هغه کې له دوو نه زياتې غونډ لې پرله پسې راغلې وي او څرګندونې يې سره يو له بله کوم ډول اړيکې او اړونده ي ولري . او داچــــې هماغه يوه يواځينې مطلب د بيلا بيلو ملو غونډ لو له مخې په بيلا بيل ډول څرګند يدنه موندلې وي . نوزياتره يې يوه غونډ له خپلواکه يا اړه وي او نوري تولې ملې ورسره بيواکه يا څرمه وي . په ګړنې ( محاوروي ) پښتو کې ګډې غونډ لې زياتره له دوو غبرګغونډ لو څــــخه جوړې وي چې په دې ډول په دواړو يو ځاي شوو غبرګغونډ لو کې داړو او څرمو غــونډ لو شمير يو برابر وي لکه په لاندې يوه کونې :

بنه دي چې ستړګې دي وريږدي ـــ که چيرې غټې وای خوړ لای به دې ومه

يارې دکوټ زه دتيرا يـــــــــم ـــ خدايه کوټ وران کړي چې جوړه تيزاله څوله

په لومړۍ لندۍ کې لومړي برخه (مسره) يوه غبرګغونډ له ده چې اړه غونډ له پکې بيخــــــه او څرمه وريسې ده . دويمه برخه (مسره) يوه بله غبرګغونډ له ده چې څرمه غونډ له له اړې غونډ لې نه مخه راغلې ده . داچې په لومړۍ مسره کې دويمه ( څرمه ) غونډ له په څرګندنې ويبکـــــې ( چې ) پيل شوې نو ځوله لومړي مسره يوه څرګندنې غبرګغونډ له بلل کيږي او داچې په دويمه مسره کې لومړي ( څرمه ) غونډ له په اړوييکو ( که چيري ) پيل شوې نو ځوله دويمه مسره يوه اړوتې غبرګغونډ له ده . دواړې مسرې ( غبرګغونډ لې ) سره بيا په يوه توسنې اړيکې ـــ چې په لارغه څرګنديږي ـــ يوه ګډه غونډ له جوړوي . نو له دې پلوه زموږ يادښې لومړي لندۍ يوه توسنې ګډه غونډ له ده چې يې دغږيو غونډ لو شمير څلورو ته رسيږي او لومړۍ يې ( بنه دي ) اړه غونډ له بلل کيږي او که دغې لندۍ ته د دوو غبرګغونډ لو په ستړګه وګورو نو لومړۍ غبرګغونډ له (لومړۍ مسره) اړه او دويمه غبرګغونډ له ( دويمه مسره) څرمه ده . د دويمې غبرګغونډ لې بيا دويمه مله غونډ له ( خوړ لای به دې ومه) اړه بيا اړوتې او لومړۍ هغه يې ( که چيري غټې وای ) څرمه ( اړ ) بلل کيږي .

اوداهم دلومړۍ لنډۍ (ګډي غونډه لی) لنبتیلیک (جدول):

۰۰۰ اینبونی اړیکوییکی اینبس | اینبونی لارغه ۰۰۰ اینبونی اړیکوییکی اینبس | اینبونی

له پټ اینبس سره اره — خرمه — لهپټ اینبس سره خرمه — اره

لارغه

لومړي خزګدنی غبرګغونډه له — دویمه اړوتی غبرګغونډه لـــه

توسنی ګډه غونډه لـــه

همدارازدویمه لنډۍ دیوي ګډي غونډه لی په توګه جوتولاي شو او هغه داچی داهم یوه توسنی ګډه غونډه له ده مګر په همدومره توپیرچی دلته توسنی غبرګ غونډه له تریلی (تړغبرګغونډه لی) دمخه شوي ده. اویل داچی تربولو وروستی غونډه لهپس اره ده او په دي توګه تولهٔ دویمه غبرګغونډه له (مسره) دلومړۍ غبرګغونډه لی (مسري) په وړاندي اره بلل کیږي په دي ګډه غونډه له (لنډۍ) کی دلومړي ملي غونډه لی (یارمی — دکوټ) اینبونی د (د) په غورځونه چی یوه شعري اړتیاده نیمګړي دي. دغه راز دځلورمی (اري) — اینبس خپلواکه جوله نلري اوداچی دلومړۍ غبرګغونډه لی دواړي ملي سره په یوي لارغی تړل شوي یا عطف شوي دي نو یوه تړ غبرګغونډه له بلل کیږي۰

داهم ددغی دویمی ګډي غونډه لی (لنډۍ) لنبتیلیک:

اینبس | اینبونی (بی کره) لارغه اینبس | اینبونی لارغه اینبس | اینبونی اړیکوییکی ۰۰۰ | اینبونی

خرمه — خرمه — خرمه — بس اینبس اره

لارغه

لومړۍ خرمه تړ (عطف) غبرګغونډه له — دویمه اره توسنی غبرګغونډه لـــه

توسنی ګډه غونډه لـــه

یادښت: پرتوسنی ګډي غونډه لی سربیره نوري راز راز ګډي غونډه لی هم پیداکیداي شي تشبیهی لکه دښکارندوي په دې کرۍ کی:

هریلودګلووزم دي لونلـــی — ته واراغله له ختــه کاروانـــونـــه

یاد حمید دغه لنډ ی :

سینه می دیگ زړ گی می غوښی — اوښکی اوبه دي بیلتون اوربس کوینـــه

٤ـ گډ لی (مختلطه) غونډ له :

گډ لی غونډ له هغه ده چی د یوي یوستوي غونډ لی په منځ کی یوه یا زیاتی خرمه غونډ لی ورننوتی وي • دغه راز خرمه غونډ لو ته منځپینی (معترضه) غونډ لی ویل کیږي •

جوړ ښتـ یی داچی داري غونډ لی تر اینی ( مسند الیه ) یا د هغه ترکومی برخی وروستـه د هماغه اینی یا برخی په اړیکی (ارتباط ) یوه یا زیاتی غونډ لی په خرمه ډول راشی او بیا د اري غونډ لی پاتی برخه ترټولو پاي ته راووځی • په گړنی پښتو کی گډ لی غونډ لـی ډیري لږ کارول کیږي او هغه هم په دومره پیچلی بڼـه نه • داما نا چی نه اره غونډ له پکی دومره ارته وي اونه پکی منځپینی تریوي زیاتی وي او هغه یوه هم دومره ارته نه وي که نه په غبرگو او گـډ و غونډ لو اړ ول کیږي • دلته لومړي گړنی او بیا لیکنی پښتو څخه دگډ لو غونډ لو بیلگی را اخلو :

۱) زه چی کورته ځم — رخصت اخلم •

۲) ځلمی چی پرون راغلی و — ما ونه لید •

۳) ما پروفیسور مورگن سیترنې — چی د اوروستی ځل کابل ته راغلی و — ونه لید

یا د غبرگی غونډ لی په ډول : ما د اوروستی ځل پروفیسور مورگن سیتـرنې ونه لید — چی کابل ته راغلـــــی و •

٤) خوشال ختـک — ځوا تردې چی په گوالیارکی بندي شی — له اورنگ زیبسره په داسی میړ انه — چی ساري یی نه درلود — جنگ وکړ •

داپوه دوه اړخیزه گډ لی غونډ له ده په دې توگه چی دلومړ ی اري غونډ لی (خوشا ل ختـک له اورنگ زیب سره په میړ انه جنگ وکړ ) دوه منځپینی غونډ لی راغلی دې چی لومړ ی یی ( په گوالیارکی بندي شی ) د اینی (خوشال ختـک ) په گوالیارکی بندیکید ل څرگندوي او دویمه یی

( ساري يې نه درلود ) د اينبوني (جنګ وکړ ) ديوه کړول (په ميړانه) ښرګندوي اوبيا وړيکوي .
(پخواتري - چې ) او (داس - چې ) د د رو واړو ملوغونډلو ترمنځ داړيکو ييکو دند ه
پرځاي کوي لومړي زماني اړيکي او دويم ځرنګيز اړيکي ،

دلته وينو چې داړي غونډلي اينبي (خوشال خټک ) له خپل اينبوني (جنګ وکړ ) يونادوده
لړبوالي لري نو په دي لاندي ډول دغه لړبوالي له منځه وړلاي شو :

خوشال خټک - پخواتردې چې په ګواليارکي بنديشي - له اورنګ زيب سره
په داسي ميړانه جنګ وکړ -- چې ساري يې نه درلود .

دنني کاسرري نړ ۍ په غونډتبو او اغيزو سره دغه راز غونډلي په (( ليکي )) پښتو
کې مخ پرزياتيدو او پيچلي کيدو دي لکه :

٥) ديونان نوميالي فيلسوف اپلاتون -- چې په اسلامي نړۍ کې دلوي نامه
خاوند شو - دلويديزې نړۍ لومړي پوهاند دي - چې د ژبې دبنسټ او ځرنګوالي په باب يې
فلسفي څيړنه کړيده - اوله دي لامله دلويديزې نړۍ د ژبپوهنې پرانيستونې اودپرله غښتې
ګرامر بنسيرونې ګڼل شويدي .

٦) ديونان ستري جنګي بوللي يا حماسي (( ايلياد او اوديسي )) چې سپيڅلې
ګڼل کيدي په خورا لرغونو زمانو کې په داسي يوه ژبه او سبک کښل شوي وې چې کابونابومه
(نامانوسه) شوې وې ( الهام : وزمه -- ٦ ګڼه ١٣٥١ ) .

په پنځمه ګډلي غونډله کې يواځي (ديونان نوميالي فيلسوف اپلات---------ون
---------------------------------ه اسلامي نړۍ کې دلوي نامه خاوند شو - دلويديزې
نړۍ لومړي پوهاند دي ) رښتيني ګډلي غونډله جوړه کړې - ځکه ديوي اړي ترمنځ يوي
منځپيښي غونډلي ځاي نيولي دي -- او وريسې نوري دوې ورسره په ځرګندني ارتومښ---ی
بڼه د زياتي ځرګندوني لپاره ملګري شوي دي .

## ګړنې یا اصطلاحات (IDEOMS)

په غونډله پوهه کې موتر او سه د وینا بشپړ یوونونه (واحدونه) یاپه بله ژبه غونډلې وځیرلی اوپه ترڅ کې مو واړه واړه وېی غونډونه یا لغوي ګروپونه (فقري) چې د ګړنو (ایدیمونو) په نامه بلل کیږي •

پیژندون (تعریف):

یوه ګړنه یوداسې وېی غونډ دي چې دراز راز مانا لرونکو (دوویاییرو) وییو او وییکو څخه منځ ته راغلې وي اوپه ژبه کې یونا اټکل کیدونکی لرغونتوب لري • یوه ګړنه تل په جولیز ډول یوناشنونې او ټینګ یووالی نه وي خوپه مانیز ډول بوناشنونې غونډ (مجموع) ګڼل کیږي • په بله وینا یوه ګړنه د داسې وییو غونډ دي چې په یوه غونډ له ییز یاپه بله وینا غونډلپوهیز (نحوي) چاپیریال کې ځانته بیلا بیله جولیزه څپلواکي ساتلای شي • د ساري په ډول له هر راز اوښتې راوښتي سره مخامخیدای شي خوپه ګډه چې کومه یوه بواځینۍ مانا منځ ته راوړي نه شنل کیدونکې مانا بلل کیږي دغسې یوه منځ ته راغلې ګډه مانا کله داسې وي چې د ټوکونو (اجزاوو) له بیلا بیلو مانا وو سره څه ناڅه ورته والی اواړیکې لري او د شنلو (تجزیه کیدلو) پروخت ین ګډه مانا کورته له منځه نه ځي — د چاخبره یو څرک هومره ین لالګیږي لکه برخه اخیستل — سرېرڅنهس کیدل مقصد ته رسیدل — وروسته پاتیدل خوله پرخوله کیدل — پرمخ تلل — لاسته راوړل یاراوستل — له منځه وړل ••• او نور •

په دویم ډول ګړنوکي ګډه مانا داسې ويچې د بیلا بیلو ټوکونو ماناوې ین ښکارندوي نه شي کولای او له ټوټه ټوټه کیدو سره هر ټوک خپلې ګوښې اري مانا ته ورګرځي کټ مټ لکه د یوه کیمیاېي ترنګ ټوکونه (د بساري په ډول هایدروجن او اکسیجن چې یوې هم ځانته د خپل ترنګ ((اوبو)) ښکارندوي نه شي کولای) بیلګې ین لکه: غوږ ړیول — زړه مړیدل — زړه خوړل زړه ماتیدل — زړه پخیدل — سپینې ښوییدل — تښتیدل یا غوټه کیدل — پزې ته رسیدل سترګې رپیدل — لاس ترزنې کیناستل — لاس پرسرکیدل — لاس اخیستل او داسې نورې کنایې او مجازي مانا ښندونکې ګړنې •

دریم ــ هغه ګړنی دي چې دمتلو او بولنو (مقولو) په ډول وي یا په بله وینا یوه غوره وینا وجیزه ډوله یا مقوله ډوله وینا وي او یا متلونه وي د امانا چې کومی کیس ته ګوته نیس او هره یوه دګړنا ر په بهرکی دیوه ناشنونکی ویی غونډ (لغوي ګروپ) په توګه لکه یوه ګړنه کارول کیږي کټ مټ دشاعرانه ارسال المثل غوندي لکه : دګبرجام نسکور دي ــ پلانی او بیستانی سره نوک او اوري دي ــ پلانی او بیستانی دیوې سوړي ماران دي یا دیوي باغچې ګلان دي ــ په یوه ګل نه پسرلی کیږي ــ داهم په انارو ــ خوند یی باران وري دي ــ دکوهی خټــه پرکوهی لګی ــ ورورې خوري به کړو حساب ترمنځه ــ یوه بلابلی ته وایی چې بو ــ بنه بنه دي بدبد دي ــ خپل عمل دلاري مل ــ دجولامنډه ترموزي پوري وي ــ لري ځه ــ ژرراځــــــــه ــ مه کوه پرچا چې رابه شی پرتا ــ لاس چې مات شی دغاړي بارشی یا غاړي ته ورځی ــ دچا پرتوګا بی تنتیدل (خجالت کیدل) ــ پرپچه سپریدل او کشمیر لیدل ــ لورپه لوټه تیره کول ــ اوبه له ورخه تیریدل ــ اوبه په ډانګ بیلول ــ چې په نازلوییزي په زیار زړیږي ۰ ( لکه پدې کړي کــــس : چې په نازلوی شی په زیار زړیږي ــــ زه په زیار لوی شوم په ناز ژړیـــږم

اوداسی نور ۰ له هسی عادي بولنو او متلونو سره دغه رازګړ نوتوییر همدومره دي چــــی دلته بولنی او متلونه په جلا او خپلواک ډول دوینا له بهیره بهر ــ دیوي کړي یا شوي وینا دټینګار پخلی او جوتتیا لپاره په خرمه او سرباري (اضافی) ډول نه بلکې پخپله داري وینا یا یوه وینا پیزیوو ن (غونډ لی) دیوه نه جلا کیدونکی توک اوبرخی په توګه کارول کیږي له دې کبله د داسې تضمین شوي یا استخدا م شوي متل یا بولنی اربهــه تل خوندي نه پاتیږي ۰ (لکه په پا بنی شعرکی) خوبه هرډول دیوي ګړنی غوندي دوینا یا غونډلی دننه دمانــــا او جولی له مخې بونه شنل کیدونکی ویی غونډ اوبرخه جوړوي لکه بخرزي ــ لاس ترزنی کیناست په دي غونډ له کی (لاس ترزنی کیناست) ګړنیز غونډ (کل) دي چې دیوي غونډ لی اپښونی یی جوړ کړي دي ۰ نورساري (مثالونه) یی لکه :

د رخو ــ گوته پرغابس ونیولــــــه

ځلمی ــ اوبه په ډانگ بیلــــوي

ځلمی ــ له زانځونه کټوري غواړي

یا دیوه غونډ (اینبس یا اینبونی) یوه برخه جوړ وي لکه :

تور ــ (اوبه په ډانگ بیلول) غواړي •

اویا دواړه غونډه یا په بله وینا یو متل ټوله غونډ له جوړ وي لکه :

نوك او اوري ــ سره نه بیلیږي •

د پښتو ییږ چار له مخی دوه رازه گړنی سره توپیریږي نو موالة گړنه لکه دبوړن ټال (قوس‌قزح) یا دگیدړ واده (افتاب باراںك) دیمه کړ واله غونډ له لکه غوز ړبول ــ په ډنډ کی څوله کیدل • په دي توگه یوه نوموالهگړنه کیداي شی دکړ په ملگرتیا کړ واله شی لکه لاس ترژنی کیدل اوداسی نور •

غونډ له پوهیزه (نحوي) شننه یا تجزیه :

د دي لپاره چی دغونډ له پوهیزو یوونونو (غونډ لو او غونډونو) پرمانیزو اوجولیزو جوړښتونو ، او ډون اوخپلمنځی اړیکو مو ښه ترا رڼا اچولی وي ، دلته غواړ و ځینی بیلگی‌یی ترشننی (تجزیی) اوسپړنی (تشریح) لاندي ونیسو • په دي ترځ کی به راته داهم په ښه توگه ځرگنده شی چی دغه راز شننه له غزپوهیزي اوگړ پوهیزي له شننو سره څه توپیرلري •

۱ ــ زما ورور نن له کندهار څخه کابل ته راغــــی

داغونډ له وینو چی له نهو کوچنیو ټوکونو (زما ــ ورور ــ نن ــ له ــ کندهار ــ څخه ــ کابل ــ ته ــ راغی) څخه جوړ ه ده او دغونډ له پوهی له پلوه تر دغی زیاته نه شنل کیږي • که څه هم ځینی ټوکونه لکه (زما) ساده وی نه بلل کیږي او پردوو ټوکونو یاټوکونو ټوټی کیږي مگر دغه راز ټوټه کیدنه یاشننه په‌گړ پوهی پوري اړه لري نه په‌غونډ له پوهی پوري اوداسی نور • دلتــه یوازی په نهو ټوکونو شننه ــ دهغوي اوډون اوخپل منځی اړیکی ښو ول د غونډ له پوهی‌وینه ده• د دي ټوکونو په ډله کی ځینی بیاداسی دي چی دځینواړیکو له مخی سره غونډ غونډ یاجوړ ه جوړ ه کیداي شی لکــــه :

